

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** جغرافیه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د جغرافیې څانګې د درسي کتابونو علمي او مسلکي غړي

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

**ټولګی:** دولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته «لوستل» و، درود وايو.

څرنګه چې ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، نو د ګران هېواد ښوونيز روزنيز نظام به د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز روزنيز نظام کې د ودې او پراختيا په لوري بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله، د ښوونيز روزنيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت مهم لومړيتوب دی. همدارنګه، په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو روزنيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نه شو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز روزنيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هېڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، هره ورځ په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور غړي وي.

همدا راز، له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، چې له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکي هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپيڅلي او انسان جوړوونکي هڅې کې بری غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز روزنيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لړلیک

**سرلیکونه** **مخونه**


## لومړی څپرکی
## سرحدونه او اداري تشکیلات

لومړی لوست- ۱-۱ د افغانستان څلور خواوې او موقعیت ........................ ۱
دویم لوست- ۱-۲ شمالي سرحدونه ........................ ۵
دریم لوست- ۱-۳ شمال ختیځ سرحدونه ........................ ۹
څلورم لوست- ۱-۴ ختیځ او جنوبي سرحدونه ........................ ۱۳
پنځم لوست- ۱-۵ لوېدیځ سرحدونه ........................ ۱۷
شپږم لوست- ۱-۶ اداري تشکیلات ........................ ۲۱

## دویم څپرکی

اووم لوست- ۲-۱ د هېواد په پرمختیا کې د نفوسو اهمیت ........................ ۲۵
اتم لوست- ۲-۲ احصایه او د نفوسو جغرافیایي وېش ........................ ۲۷
نهم لوست- ۲-۳ د نفوسو وده او منځنی عمر ........................ ۲۹
لسم لوست- ۲-۴ د نفوسو څرنګوالی او په هېواد کې قومي جوړښت ........................ ۳۳
یوولسم لوست- ۲-۵ داخلي او خارجي مهاجرتونه او نفوسو ځای پر ځای کیدل ........................ ۳۷

## دریم څپرکی

دولسم لوست- ۳-۱ دین ........................ ۴۱
دیارلسم لوست- ۳-۲ ژبه ........................ ۴۵

## څلورم څپرکی

څوارلسم لوست ۴-۱ د مواصلاتو اهمیت ........................ ۴۹
پنځلسم لوست - څمکنی حمل او نقل(لېږد را لېږد) ........................ ۵۳
شپاړسم لوست - الف- څو ډوله ترانسپورتي وسایل پېژنئ؟ ........................ ۵۷
اوولسم لوست - ب–د افغانستان د لویو لارو په هکله څه پو هیږ ئ؟ ........................ ۶۱
اتلسم لوست- ۴-۳ د هوایي ترانسپورت په هکله څه پوهېږئ؟ ........................ ۶۷
نو لسم لوست- د هېواد هوایي شرکتونه او ډګرونه ........................ ۶۹
شلم لوست- ۴-۴ الف -د اړیکې اهمیت ........................ ۷۳
یوویشتم لوست- ب – پست په افغانستان کې ........................ ۷۷
دوه ویشتم لوست- ټیلیفون او مبایل ........................ ۸۱
درویشتم لوست- انټرنیټ، ایمیل او فکس ........................ ۸۵

## پنځم څپرکی - نفوس او نژاد

څلورویشتم لوست ۵-۱د نفوسو وېش او ګڼوالی ........................ ۸۹
پنځه ویشم لوست ۵-۲ په نړۍ کې د نفوسو د زیاتوالي او لږوالي ستونزې ........................ ۹۵
شپږویشتم لوست – د نړۍ په ځینو هېوادونو کې د فعالو اقتصادي نفوسو د لږوالي ستونزې ۱۰۱
اووه ویشتم لوست ۵-۳ مهاجرتونه او د هغو لاملونه ........................ ۱۰۵
اته ویشتم لوست -نړیوال مهاجرتونه او د هغو پایلې ........................ ۱۰۹

# لړلیک

**سرليکونه** **مخونه**


نهه ويشتم لوست ٥-٤ - الف توكمونه (نژادونه)........................................ ١١٣
دېرشم لوست ب - د توكمونو جغرافيايي وېش........................................ ١١٧

**شپږم څپرکی**

يو دېرشم لوست ٦-١ د نړۍ دمهمو دينونو په هكله څه پو هېږئ ؟........................................ ١٢٣
دوه دېرشم لوست الف _ د اسلام سپيڅلی دين........................................ ١٢٥
درې دېرشم لوست ب _ د مسيحيت د دين په هكله څه پوهېږئ؟........................................ ١٢٩
څلودېرشم لوست ج _ تائوييزم او شنتوييزم د آينونو په هكله څه پوهېږئ؟........................................ ١٣٣
پنځه دېرشم لوست د _ بودايي او هندوييزم آينونو په هكله څه پوهېږئ ؟........................................ ١٣٥
شپږم دېرشم لوست ٦-٢ د نړۍ مهمې ژبې........................................ ١٣٧
اوه دېرشم لوست الف -عربي ژبه........................................ ١٤١
اته دېرشم لوست ب - انگليسي ژبه........................................ ١٤٥
نه دېرشم لوست ج _ لاتيني ژبه (فرانسوي ، اسپانوي او پرتگالي)........................................ ١٤٩
څلوېښتم لوست د _ جرمني ژبه........................................ ١٥٣
يو څلوېښتم لوست هـ د چينايي ، جاپاني او اندونزيايي ژبو په باره کې څه پوهېږئ؟ ١٥٧
دوه څلوېښتم لوست و _ بالتيك ، ليتواني او سلاوي ژبې........................................ ١٥٩
درې څلوېښتم لوست ز_ هندي او اردو ژبې........................................ ١٦١

**اووم څپرکی**

څلور څلوېښتم لوست ٧-١ -اړيکې او نړيواله کېدنه........................................ ١٦٣
پنځه څلوېښتم لوست: د اړيکو د غوره وسيلو ډولونه........................................ ١٦٥
شپږ څلوېښتم لوست الف- پُست Post په نړۍ کې........................................ ١٦٧
اووه څلوېښتم لوست ب - په نړۍ کې ټيليفون او موبايل........................................ ١٦٩
اته څلوېښتم لوست ج -فکس په نړۍ کې........................................ ١٧١
نهه څلوېښتم لوست د - انټرنېټ او ايمېل........................................ ١٧٣
پنځوسم لوست ٧-٢- د سپوږمکيو شبکه........................................ ١٧٧

**اتم څپرکی**

د ژوندانه د چاپېريال نړيوالې ستونزې
يو پنځوسم لوست ٨-١- د سون موادو لوگي او غازونه........................................ ١٨١
دوه پنځوسم لوست الف- د حمل و نقل (وړلو، راوړلو او لېږد رالېږد) وسيلې ...... ١٨٥
درې پنځوسم لوست ب – د ژوند په چاپېريال باندې د کارخانو آغېزې........................................ ١٨٧
څلور پنځوسم لوست ٨-٢ – د صنعتي موادو پاتې شونې........................................ ١٩١
پنځه پنځوسم لوست ٨-٣- د اوزون د طبقې د نري کېدلو خطرونه........................................ ١٩٥
شپږپنځوسم لوست د اوزون دطبقې زيانمن کېدل........................................ ١٩٩
اووه پنځوسم لوست ٨-٤ د ځنگلونو پرېکول........................................ ٢٠٣
اصطلاحات........................................ ٢٠٦

# لومړی څپرکی
# سرحدونه او اداري تشکيلات

## ۱-۱ څلورخواوې او موقعيت:




د افغانستان د موقعيت او څلور خواوو په هکله څه پوهېږئ؟

د آسيا د لويې وچې دولس هېوادونه د افغانستان په ګډون په وچې پورې تړلي دي. افغانستان د طبيعي ځانګړتياوو له مخې د آسيا په جنوب کې يو غرنی هېواد دی. افغانستان د پنځه زره کلن تاريخ په درلودلو سره د آسيا لرغونی هېواد ګڼل کېږي. افغانستان په شمالي نيمه کره کې د شمالي عرض البلدونو د ۲۹ درجو، ۲۲ دقيقو او ۵۳ ثانيو او ۳۸ درجو، ۲۹ دقيقو او ۲۸ ثانيو او ختيځه نيمه کره کې د ختيځ طول البلدونو ۶۰ درجو، ۲۸ دقيقو او ۴۱ ثانيو او ۷۴ درجو، ۵۱ دقيقو او ۴۷ ثانيو ترمنځ موقعيت لري. د افغانستان مساحت ۶۵۲، ۰۰۰ کيلومتره مربع دی. مساحت يې له هر يوه اروپايي هېواد څخه زيات دی. افغانستان د مساحت له مخې په آسيا کې دولسم هېواد دی[۱]. د افغانستان نفوس په ۱۳۹۷ لمريز کال کې ۳۰ ميليونه تنه اټکل شوي دي. د افغانستان اعظمي اوږد والی له ختيځې نقطې يعنې د يولي له درې څخه تر لويديځې نقطې يعنې ذوالفقار پورې ۱۲۰۰ کيلو متره او سور يې په شمال کې له خماب څخه په جنوب کې د چګايي تر غرونو پورې ۹۱۲ کيلو متره دی. د هند سمندر ته د افغانستان نږدې فاصله د هلمند د ولايت د کشتګان

---

۱- روسيه، چين، هند، سعودي عربستان، ايران، منګوليا، قزاقستان، اندونيزيا، پاکستان ،ترکيه، ميانمار او افغانستان .



**د افغانستان موقعیت په نړۍ کې**

غر د مزاري د کوتل له جنوب لویدیځ څخه د عرب د سمندرګي تر ډېر نږدې ساحل پورې تقریباً ۳۹۰ کیلومتره ده. افغانستان په شمال کې د منځنۍ آسیا له تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان، په لویدیځ کې له ایران او په ختیځ او جنوب کې پاکستان سره پوله لري.

د افغانستان ختیځ او جنوبي سرحدونه د ډیورنډ د تپل شوې کرښې په واسطه چې د پښتنو قبایلوله منځ څخه تېرېږي، په نښه شوي دي. د افغانستان خلکو هغه په رسمیت نه ده پېژندلې[1].

افغانستان په شمال ختیځ کې تقریباً د ۹۲ کیلومترو په واټن د چین سنکیانګ ولایت سره پوله لري.

افغانستان د پامیر په برخه کې څه نا څه تر ۲۴ کیلو مترو پورې سور لري چې تاجکستان له

---

۱- د افغانستان او برتانوي هند ترمنځ طبیعي سرحد د سند سیند او د بلوچستان جنوبي سواحل وو. خو د انګلیسانو دسیسو او د ګندمک او ډیورنډ د معاهدې په تپلو د افغانستان له خاورې څخه یوه برخه بېله شوه او د افغانستان سرحد د واخان د کلیک کوتل څخه تر بلوچستان او ملک سیاه تر غرونو پورې وټاکل شو. چې د هغې له مخې د چمن، پښین، وزیرستان، کرمې، پاړه چنار، اپریدو، باجوړ، سوات او چترال سیمې له افغانستان څخه بېلې شوې او د هغه وخت د برتانوي هند په دولت پورې وتړل شوې چې د پاکستان له منځته راتلو وروسته یې پاکستان ته پرېښودې، چې د افغانانو لپاره د منلو وړ نه دي.

کشمیر څخه جلا کوي. افغانستان دجغرافیایي موقعیت له مخې د منځنی آسیا په لاره کې پروت دی. د دې سیمې موقعیت د سیاست او اقتصاد له پلوه ډېر مهم دی. څکه چې افغانستان، ایران، هند، پاکستان د درېو حوزو او د منځنی آسیا هېوادونه سره یوځای کوي. د منځنی آسیا هېوادونه هم سمندر ته لاره نه لري. له همدې امله یې سوداګري د آسیا د لویې وچې له سویلي هېوادونو سره د افغانستان له لارې کېږي. همدغې موضوع د افغانستان موقعیت ته زیات ارزښت وربخښلی دی.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو و وېشل شي. هره ډله دې د لاندې موضوعاتو په باره کې یوه له بلې سره بحث وکړي. د هرې ډلې یوتن به خپله موضوع په ټولګي کې تشریح کړي.

- افغانستان د ځمکې د کرې په کومه برخه کې پروت دی. د طول البلد او عرض البلد له مخې معلومات وړاندې کړئ.
- د افغانستان نقشه رسم کړئ. اعظمي اوږد والی او سور یې د سیمو له مخې په نقشه کې وښیئ.
- د افغانستان نقشه رسم کړئ. له سمندر سره د افغانستان ډېر نژدې واټن د سیمو له نومونو او فاصلو سره بیان کړئ.
- د افغانستان څلورخواوې بیان کړئ.



## پوښتنې:

۱- د افغانستان طبيعي ځرنگوالی بيان کړئ؟

۲- د پنځو داسې هېوادونو نومونه واخلئ چې له افغانستان څخه ډېر مساحت لري.

۳-زموږ هېواد له سمندر څخه څومره واټن لري؟

۴- يوازې د افغانستان د شاوخوا د طول البلدونو او عرض البلدونو درجې ووايئ.

۵- د افغانستان مساحت څومره دی؟

۶- د افغانستان خلکو د ډيورنډ کرښه په رسميت ولې نه ده پېژندلې.



## له ټولگي څخه بهر فعاليت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ. د يولې دره، ذوالفقار دره، پامير، خماب او د افغانستان گاونډيان په نقشه کې وښيئ.

# ۱ - ۲ شمالي سرحدونه

الف: د امیر شیر علي خان سرحدي کرښه.




(۳) شکل د افغانستان شمالي سرحدونه

**د افغانستان کوم سرحد د پنج او آموسیند په واسطه ټاکل شوی دی؟**

پـه ۱۹ پېـړۍ کـې د انګلیسـانواو تزاري روسـیې د پرمختګ د سیاسـت لـه مخې د دې خـاورې زیاتـه او مهمـه برخه د افغانسـتان لـه بدن څخه جلا شـوه. پخوا به د افغانسـتان شـمالي سـرحدونه د افغانسـتان د محلي حکومتونو او د مرکزي آسـیا د هېوادونو له خانانو او یـا د افغانسـتان د مرکـزي حکومتونـو او د ماوراءالنهر د امیرانو ترمنځ ټـاکل کېدل. خو کلـه چـې په ۱۹ پېړۍ کې تزاري روسـیې په مرکزي آسـیا کې په فتوحاتـو پیل وکړ، د دې لپاره چې انګلیسـتان خپلې اسـتعماري ګټې د هند په شمال کې وساتي، نو د روسانو له نیت څخه په وېره کې شـول او ویې غوښتل، چې د روسانو د یرغل په وړاندې زر تر زره خنډونه رامنځته کړي. په لومړي پړاو کې یې امیر شـیر علي خان وهڅاوه چې له تزاري روسیې سره



امیر شیر علي خان

خپل سـرحدونه وټاکـي. د دواړو دولتونو ترمنځ خبرې پیـل شـوې. د انګلیسـانو د بهرنیو چـارو وزیــر لارډ ګرینویـل Lord Granville او د روسـیې د بهرنیوچارو وزیر پرنس ګورچکوف Prince Gorchakov د افغانسـتان او تزاري روسـیې د سـرحدونو د تثبیت لپاره وټاکل شـول. په پای کې په ۱۸۷۳ میلادي کال، چې د ۱۲۵۱ لمریز کال سـره سـمون لري، د افغانسـتان شمالي سرحدونه له زرقول څخه تر خماب پورې چې د پنج او آمو سیندونو مسیر دی د امیر شیرعلي خان د سرحدي کرښې په نوم تثبیت شول.

د هغـه تـړون له مخې چـې د ۱۳۲۵ لمریـز کال د غبرګولي د میاشـتې پر ۲۲مـه نېټه، چې د ۱۹٤٦ میلادي کال د جون له میاشـتې سـره سـمون لري، د وخت د شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر مولوتوف او په مسکو کې د افغانستان سفیر (سلطان محمد خان شیر زوی) په واسطه لاسـلیک شـو، پرېکړه وشوه چې د آمو سیند منځنۍکرښه دسـرحد په توګه وپېژندل شي او د درقد ټاپو چې تقریباً ۴۲۲ کیلومتره مربع مسـاحت لري او د تخار ولایت په شـمال کې پرته ده، د افغانستان د خاورې برخه وګڼل شي. په۱۳۴۲ لمریز کال کې، چې له ۱۹۴۶ میلادي کال سره سمون خوري، د پنج او آمو سیندونو له اوبو څخه د ګټې اخیستنې تړون لاسلیک شو.

### ب- د ریجوي سرحدي کرښه:

کله چې امیر عبدالرحمن خان واک ته ورسېده، ویې پتیله چې پاتې شمالي سرحدونه تثبیت کړي. نو د تزاري روسیې او برتانیې ترمنځ دوهم ځل خبرې پیل شوې. پرېکړه وشوه چې د درېوو هېوادونو افغانستان، برتانیې او روسیې پلاوي دې د ۱۸۸۴ میلادي کال په نومبر کې سرخس ته حاضر شي. د روسیې هیأت ټاکلي ځای ته په خپل وخت حاضر نه شو. برعکس، د روسیې عسکرو په منځنۍآسیاکې خپلو یرغلونو ته دوام ورکړ، پنجدې ته نیژدې شول او د خاتون له پل څخه یې، چې د هریرود د سیند له پاسه دی، د نظامي اډې په توګه کار اخیست. د جنرال غوث الدین خان په مشرۍ، د افغاني پوځیانو چې شمېر یې دوه زرو تنوته رسیده او د پنجدې د ساتنې له پاره هلته اوسېدل د روسیې له قوې سره چې د علي خانوف تر مشرۍ لاندې وه، نښته وشوه. افغاني پوځیانو، چې



امیر عبدالرحمن خان

شمېر یې لږ او په محاربوي تجهیزاتو هم سمبال نه وو، له پنجدې څخه دفاع ونه شوه کولای. پنجده او آق تپه په ۱۸۸۵ میلادي کال، چې له ۱۲۶۳ لمریز کال سره سمون خوري، تزاري روسانو اشغال کړه. له دې واقعې وروسته د انګلستان د هغه وخت د ملکې، وېکټوریا، له ویرې څخه ډک تلګرام دوهم الکساندر تزاري روسیې ته د دې سبب شو چې روسي عسکرو له زیات پرمختګ څخه صرف نظر وکړ. یوځل بیا د تزاري روسیې او انګلستان د استازو ترمنځ په لندن کې سرحدي مذاکرې پیل شوې چې د افغانستان شمال لویدیځ سرحدونه د تزاري روسیې سره وټاکل شي. بېلابېلو هیأتونو په مذاکرو پېل وکړ، چې په ۱۸۸۷ میلادي کال، چې له ۱۲۶۵ لمریز کال سره سمون خوري، شپږ فقره یيز پروټوکول یې لاسلیک کړ او شمال لویدیځ سرحد چې د ریجوي کرښې Riage Way په نوم یادېږي د نقشې پرمخ تشبیت کړ. دغه سرحدي کرښه وروسته د انګریزانو د استازي د چارلس پټ charles pate او د تزاري روسیې داستازي کپتان کامروف capitan kamerove پواسطه د څلورو کلونو په موده کې د د ذوالفقار له درې څخه ترخماب پورې په یوې قوسي کرښې تثبیت شوه چې ۳۰ کیلومتره د مرغاب د سیند او نور یې د پېلرونو پواسطه په نښه شوې.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو وېشل کېږي. هره ډله له لاندنیو موضوعګانو څخه پر یوې موضوع په خپلو کې بحث کوي. د هرې ډلې یو نفر خپله موضوع د ټولګي په مخ کې بیانوي.

- د افغانستان نقشه رسم او د امیر شیرعلي خان سرحدي کرښه په کې په نښه کړئ او د هغې په باب معلومات ورکړئ.
- د افغانستان نقشه رسم کړئ؛ دریجوي سرحدي کرښه په کې وښیئ او دهغې په باب معلومات ورکړئ.



## پوښتنې:

۱- د افغانستان شمالي سرحدونه څرنګه وټاکل شول؟

۲- انګلیسان د تزاري روسیې له نیت او فتوحاتو څخه، چې په مرکزي آسیا کې یې ترسره کړل، ولې په وېره کې و؟

۳- په اوسني وخت کې کوم هېوادونه کولی شي د پنج او آموله سیندونو څخه په ګډه ګټه واخلي.

۴- روسانو پنجده په څه ډول اشغال کړه؟

۵- روسانو په افغانستان کې زیات پرمختګ ته ولې دوام ورنه کړ؟

۶- د ریجوې سرحدي کرښه له کومې سیمې څخه ترکومې پورې اوږده شوې ده؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ او په هغې کې د زرقول ( ویکټوریا) جهیل، خماب، ذوالفقار، د امیر شیرعلی خان او د ریجوې سرحدي کرښې وښیئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وښیئ.

# ۱-۳شمال ختیځ سرحدونه




د افغانستان نقشه، (د شمال ختیځ او پامیر سرحدونه)

د افغانستان په شمال ختیځ کې دوې سرحدي کرښې شته. د پامير سرحدي کرښه د افغانستان او تاجکستان ترمنځ او شمال ختیځ سرحد د افغانستان او چين ترمنځ په نښه شوېدی. د پامير او واخان لوړه سطحه، چې د سمندر له سطې څخه ۶۰۰۰ متره لوړوالی لري، د سیند سيند او آمو سيند د څانګو ترمنځ بېلېدونکې ساحه ده. دغه دواړه سيندونه د همدې سيمې له دايمي کنګلونو څخه سرچينه اخلي. له همدې امله، د پامير لوړه سطحه د نړۍ د بام په نامه شهرت لري. دغه کم سوره افغاني ساحه د هغې وخت د تزاري روسيې، چين او برتانوي هند ترمنځ پرته وه. په دې ساحه کې د سرحدونو تثبيت له ډېرې مودې څخه د بحث لاندې وو.

د ۱۸۷۳ - ۱۸۸۷ میلادي کلونو ترمنځ، کله چې د افغانستان شمالي سرحدونه تثبیتیدل، د شمال ختیځو سرحدونو په هکله هم خبرې وشوې. خو څرنګه چې د آمو د سیند سرچینه څرګنده نه وه معلومه، نو په دې برخه کې څه ستونزې وې. ځکه چې ځینوفکر کاوه چې د آمو سیند د زرقول له جهیل څخه سرچینه اخیستې ده او ځینو ویل چې د آمو سرچېنه د اقسو اوبه دي چې د چقمقتین له جهیل څخه یې سرچینه اخیستې ده. له همدې امله، پدې برخه کې د افغانستان د سرحد ټاکنه او رسمول ضروري وه.

د امیر عبدالرحمن خان د دورې په وروستیو کلونو کې په ۱۸۹۵ میلادي کال کې، چې د ۱۲۷۴ لمریز کال سره سمون لري، د دربوو هېوادونو استازي چې له افغانستان څخه غلام محی الدین خان د هغه وخت د قطغن او بدخشان د ولایت حکمران، مجرجرلو Major Gerlow د انګلیسانو د هیأت مشر او فیفروشوایکوسکي Fifroshuikoisky د تزاري روسیې د هیأت مشر وو، د کوچني او لوی پا میر په سیمه کې یې په مذاکرې پیل وکړ. دغه مذاکرې نه میاشتې اوږدې شوې. په پای کې، د پامیر سرحد په ختیځ کې د چېن ترسرحده پورې د افغانستان او تزاري روسیې ترمنځ وټاکل شو. د انګلیسانو ځینې سیاستمدارانو د خپلو لاندې شویو ساحو او د تزاري روسیې ترمنځ له یوې حایلې ساحې سره مینه درلوده. د پامیر او واخان په ساحه کې د انګلیس او روسیې امپراطورۍ یوه له بلې سره نښتې وه. د دې لپاره چې د هغوی ترمنځ یوه حایله ساحه راشي، نو واخان یې بې پوښتنې افغانستان ته ورکړ.

د پامیر سرحدي کرښه د زرقول د جهیل له ختیځ څخه په ختیځ کې د یولي تر درې پوري اوږده ده. د روسیې دولت د ۱۸۹۶ میلادي کال د مارچ په میاشت کې دغه کرښه ومنله. په دې ډول، واخان افغانستان ته د یو نړیوال تړون له مخې ورکړل شو. د همدې کال په اکتوبر کې امیرعبدالرحمن خان درواز ونیو. روسانو د آمو هغه خوا کې روشان او شغنان، چې د افغاني قوې له خوا خالي شوې وه، د بخارا امیرته وسپارل.

په ۱۹۴۹ میلادي کال کې د چین د ولسي جمهوریت له تأسیس څخه وروسته سرحدي مذاکرې یوځل بیا د محمد ظاهر شاه د پاچاهۍ په دوره کې د افغانستان د دولت او د چین د ولسي جمهوریت ترمنځ پیل شوې. په ۱۳۳۶ لمریز کال کې، چې له ۱۹۵۷ میلادي کال سره سمون لري، موافقه وشوه چې د دواړو هېوادونو ترمنځ دې سرحدونه وټاکل شي او د ځمکې پرمخ دې تثبیت شي. نو شمال ختیځ سرحد چې دیولي له درې څخه د یوقوس په بڼه د کلیک تر غاښي پورې، چې د واخجیر غاښي په جنوب ختیځ کې پروت دی، د افغاني پامیر او د چین د سنکیانګ ولایت ترمنځ د ۱۳۴۳ لمریز کال د زمري په میاشت کې په فني ډول د پیلرونو په نصبولو علامه ګذاري او تثبیت شو.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي پر ډلو ووېشئ. هره ډله دې په خپلو کې پر لاندې موضوعاتو بحث وکړي. یوتن د ډلې په استازیتوب خپله موضوع ټولګیوالوته تشریح کړي.

- د پامیر د لوړې سطحې او د هغې د مخکنیو او اوسنیو حدودو په باره کې بحث وکړئ.
- د پامیر سرحدي کرښه څرنګه وټاکل شوه؟
- د حایل ساحې هدف څه و؟
- د پامیر د ساحې نقشه رسم، شمال ختیځې سرحدي کرښې وړاندې رسم او په باره کې یې معلومات وړاندې کړئ.



## پوښتنې:

۱- په ۱۹ پېړۍ کې د پامیر او واخان د سیمې حدود بیان کړئ.

۲- د پامیر او واخان د سیمې اوسني حدود شرحه کړئ.

۳- د پامیر سرحدي کرښه د کومو هېوادونو ترمنځ تېره شوې ده؟

۴- د آمو سیند له کوم ځای څخه سرچینه اخلي؟

۵- له کومو هېوادونو څخه کومو کسانو د پامیر د سرحدي کرښې د ټاکلو په پرېکړه کې برخه درلوده؟

۶- شمال ختیځ سرحد د کومو هېوادونو ترمنځ دی او څومره اوږدوالی لري؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان د پامیر او واخان د سیمې نقشه رسم کړئ او د ویکټوریا او چقمقتین جهیلونه، د یولي دره، د کلیک او واخجیر غاښي او د پامیر او شمال ختیځ سرحدونه په کې وښیئ؟

خلورم لوست:

# ۱-٤ ختيځ او جنوبي سرحدونه




د احمد شاه بابا له واکمنۍ څخه د محمدزيانو د واکمنۍ تر لومړي وخت پورې افغانستان په ختيځ او جنوب کې تر کشمير، لاهور، پنجاب، پېښور، اسماعيل خان ډېرې، غازي خان ډېرې، شکارپور، سند، ملتان او په پای کې عرب سمندرګي پورې پراخ و. خو د سدوزيي او محمدزيي ورونو ترمنځ خپلمنځي نفاق او د سدوزيانو او محمدزيانو ترمنځ سياليو کې ځينې نوموړې سيمې د وخت په تېريدو سره د انګليسانو لاس ته ورغلې او د انګليسانو له لاس لاندې سيمو او زموږ د هېواد ترمنځ سيمه کې سرحد نه و.

انګليسانو زياته قوه په ۱۸۹۳ ميلادي کال کې د افغانستان په لوري راولېږله او امير عبدالرحمن خان ته يې ياد داشت واستاوه چې د جنرال رابرټ سياسي هيأت له يوې عسکري فرقې سره په جلال آباد کې ومني. امير عبدالرحمن خان په قهر شو او خپلو سلو زرو عسکرو ته يې د تيارسۍ امر وکړ او د جهاد د اعلانولو اراده يې وکړه. خو کله چې انګليسانو دغه مقاومت وليد، له خپلو پرېکړو څخه تېر شول او په دې قانع شول چې، خپل پنځلس کسيز سياسي هيأت د مارتيمر ډيورنډ په مشرۍ کابل ته را واستوي.

ډیورنډ کابل ته راغی او د ډیورنډ تړون، چې مواد یې مخکې د انګلیسانو له خوا ترتیب شوي وو، امیر عبدالرحمن خان ته وړاندې کړ. د ۱۸۹۳ میلادي کال د نومبر پر ۱۲ نېټه، چې د ۱۳۱۱ قمري کال د جمادی الاول د دوهمې نیټې سره سمون لري، امیر عبدالرحمن خان د خپلو دولتي اراکینو له مشورې پرته د چهلستون ماڼۍ کې تړون لاسلیک کړ او یو لوی تاریخي مسؤولیت یې پر غاړه واخیست. د دې تړون په پای کې د ډیورنډ سرحدي کرښه د واخان د پامیر د غره د واخجیر کوتل له سویل ختیځ د کلیک له کوتل څخه د ملک سیاه تر غره پورې د هېواد په جنوب لویدیځه زاویه کې وټاکل شوه. چمن، پښین، وزیرستان،کرمه، پاړه چنار، اپریدي، باجوړ، سوات او چترال د افغانستان له خاورې څخه جلا شول او د هغه وخت برتانوي هند پورې وتړل شول. د برتانوي هند د هیأت د رئیس پرېکړه وکړه، چې د هغې له مخې د پنج د اوبو په شمال کې د روشان او شغنان سیمې او د آمو د سیند پاسنۍ برخه چې د ګورچکوف او ګرینویل د ۱۸۷۳ میلادي کال د پرېکړو له مخې د افغانستان په واک کې وې، بېرته دې تزاري روسیې ته وسپارل شي او د هغې په مقابل کې دې واخان او آسمار د افغانستان د خاورې برخه شي. د ډیورنډ پرېکړه چې د کاغذپرمخ لیکل شوې وه د ځمکې پر مخ نه وه ټاکل شوې، د ستونزو او اختلافونو باعث شوه. دغه پرېکړه د افغانستان د خلکو لپاره د منلو وړنه وه. ځکه چې له یوې خوا دغه پرېکړه د ځمکې پرمخ په عملي توګه د تطبیق وړ نه وه او غوښتل یې چې یو بل هیأت دغه تړون له سره وڅېړي.

خو متاسفانه د وروستیو هیأتونو مشاهدات او نظریات هم یوطرفه او غیر عادلانه وو. کله چې د افغانستان حکومت د موضوع په حقیقت پوه شو او له بلې خوا د ډیورنډ سرحدي کرښې د دې سیمې قومونه او قبیلې چې له موږ سره ګډ، دین، ژبه، فرهنګ، ثقافت، رسم او رواجونه او نور بشري مشترکات لري، پر دوه برخو ووېشل او حاکمې ستراتیژیکې نقطې هم د برتانوي هند په برخه شوې.

د ډیورنډ د تړون له لاسلیک څخه وروسته په ټولو قبایلي سیمو، په تېره بیا د وزیرو او مسودو

په قبیلو کې پرله پسې شورشونه پیل شول. هغوی له امیر عبدالرحمن خان څخه غوښتل چې له انګلیسانو څخه یې وژغوري او په افغانستان پورې یې وتړي؛ خو امیر په دې برخه کې کوم اقدام ونکړ.

انګلیسانو په زور او ظلم، نه یوازې قبایلو ته قناعت ورنکړی شو، بلکې زیاتې ستونزې یې رامنځته کړې. انګلیسانو له امیر عبدالرحمن خان سره د ښو دوستانه اړیکو لپاره په کال کې ۱۲ لکه روپۍ امیرته ورکولې. د تړون له لاسلیک څخه وروسته یې شپږ لکه روپۍ نورې هم ورباندې زیاتې کړې.

د افغانستان له خپلواکۍ (۱۹۱۹ میلادي کال) څخه وروسته بیا هم د ډیورنډ د سرحد مسأله ناحله پاتې شوه. په ۱۹۴۷ میلادي کال کې د پاکستان له جوړېدو سره، دغه موضوع بیاهم ناحله او بې پرېکړې پاتې شوه.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په پخپلو کې له لاندنیو موضوعګانو څخه پریوې بحث وکړي. د خپل بحث پایلې دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

- د احمد شاه بابا له دورې څخه د محمدزیانو د دورې تر پیل پورې د افغانستان د هغو سیمو نومونه واخلئ چې اوس د افغانستان له خاورې څخه جلا شوې دي.
- د ډیورنډ د سرحدي کرښې د ټاکلو جریان څه ډول و؟
- د افغانستان نقشه رسم کړئ او د ډیورنډ سرحدي کرښه، چترال، بلوچستان او د ملک سیاه غر په کې په نښه کړئ.



## پوښتنې:

۱- د ډیورنډ سرحدي کرښه پر کومه نېټه کې لاسلیک شوه؟

۲- د ډیورنډ تړون د چاله خوا لیکل شوې وه؟

۳- انګلیسانو د ډیورنډ تړون په څه ډول په امیر عبدالرحمن خان تحمیل کړ؟

۴- زموږ هېواد د دې تړون په لاسلیک کې څه ښه غوره کړه؟

۵- د افغانستان ولس د ډیورنډ د سرحدي کرښې پرېکړه ولې نه مني؟

۶- د ډیورنډ کرښې د دواړو غاړو خلک څه فرهنګي ورته والی لري؟

۷- انګلیسانو امیر عبدالرحمن خان ته څومره پیسې ورکولې او ولې؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ؛ د امیر شیرعلی خان، پامیر، شمال ختیځ او ډیورنډ کرښې پکې وښیئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګي ته راوړئ.

## ۱-۵ لویدیځ سرحدونه




د لویدیځو سرحدونو په باره کې څه پوهېږئ؟

زموږ د هېواد په لویدیځ کې د افغانستان او ایران ترمنځه دوه سرحدي کرښې شته، چې د مکمهان او فخري سرحدي کرښو په نومونو یادېږي چې هره یوه یې په تفصیل سره لولو.

### الف: د مکمهان سرحدي کرښه:

د سیستان سیمه چې د هېواد په جنوب لویدیځ کې ده، د تاریخ په بېلابېلو دورو کې، کله به د افغانستان او کله به هم د ایران د اداري لاندې وه.

د احمد شاه بابا له واکمنۍ څخه( په ۱۷۴۷ میلادي کال کې چې له ۱۱۲۵ هجري لمریز کال سره سمون لري) د ۱۹ پېړۍ تر نیمایي پوري سیستان د افغانستان د خاورې برخه وه.

- د امیر شیرعلي خان د واکمنۍ په وخت کې د سربندي د قبیلي مشر علي خان د ایران د دولت تابعیت ومانه او ځان یې له خپلې قبیلې سره د ایران دولت ته تسلیم کړ. له هغې څخه وروسته

د افغانستان او ایران په منځ کې سرحدي مشکلات را پورته شول، نو لازم وګڼل شول چې د افغانستان او ایران ترمنځ سرحد وټاکل شي.

د افغانستان او ایران حکومتونو د سرحدي مشکلاتو له کبله ونشو کړای چې کومې پریکړې ته ورسیږي.

نو د هند له وایسرا سره یې تماس ونیو او د افغانستان او ایران د سرحدي ستونزو د حل لپاره یې د حکمیت غوښتنه وکړه. د هند وایسرا فریډ ریک ګولډسمت Sir Fridric goldsmith د سیستان د ناحیي لپاره د حکم په توګه و ټاکه چې د افغانستان او ایران ترمنځ د منځګړي په توګه کار وکړي او موضوع فیصله کړي. ګولډ سمیت د انګلیسي هیأت رئیس د افغاني او ایراني هیأتونو له مشرانو سره دوه کاله د سیستان په سرحدونو کې په څېړنو بوخت شو او په ۱۸۷۳ میلادي کال کې یې، چې له ۱۲۵۲ لمریز هجری کال سره سمون لري پریکړه وکړه چې:

د سیستان حوزه د هلمند د سیند په وروستی برخه کې پر دوو برخو و وېشل شوه. هغه سیمې چې د نادعلي د سیند په لویدیځ کې دي، د خاص سیستان او ختیځې سیمې یې د ماوراء سیستان په نومونو ونومولې. خاص سیستان په ایران او ماوراء سیستان په افغانستان پورې و تړل شو.

په ۱۲۷۴ لمریز هجري کال کې د هلمند سیند له اصلي مسیر څخه، چې د نادعلي سیند دی او د افغانستان او ایران تر منځ سرحد و، منحرف شو او د اوبو یوه زیاته اندازه له بلې لارې چې د پریان د سیند په نوم یادېږي او د نادعلي د سیند په لویدیځ کې دی د هلمند هامون ته ورتو یيږي.

څرنګه چې د ګولډسمت په وخت کې سرحدي کرښه د ځمکې پرمخ په نښه شوې نه وه، د هلمند د سیند د مسیر تغییر د دوهم ځل لپاره د افغانستان او ایران د خلکو ترمنځ ستونزه رامنځته کړه.

ځکه چې د افغانستان حکومت د نادعلي او هلمند د سیند مسیر اصلي لاره ګڼله او د ایران دولت د هلمند د سیند د مسیر تغییر پخپله ګټه په پام کې نیولی و.

بیا له انګلیسانو څخه مرسته و غوښتل شوه. د انګلستان حکومت مکمهان Macmahan له پنځلس زره انګلیسي او هندي افسرانو سره د دې کار لپاره مؤظف کړل. د درېواړو هېوادونو افغانستان، ایران او انګلیستان هیأتونه دڅېړنې په ټولو وسایلو سمبال وو. هغوی دوه کاله او درې میاشتې له ۱۹۰۲ - ۱۹۰۵ میلادي کال پورې، چې د ۱۲۸۰ - ۱۲۸۲ هجري لمریز کلونو سره سمون لري،

د امیر حبیب الله د حکومت په دوره کې څېړنه او مطالعه وکړه او سرحدي کرښه یې د ملک سیاه له غره څخه تر سیاه کوه پورې، چې د مک مهان د کرښې په نوم یادېږي، تثبیت کړه.
کله چې د افغانستان حکومت د هلمند او ارغنداب پرمختیایي پروژه پیل کړه، د ایران دولت د ملګرو ملتونو د امنیت شورا ته د اوبو د کموالي په هکله ګیله وکړه.
په پای کې د امریکا متحدو ایالتونو پدې برخه کې د منځګړیتوب هیله وکړه. د افغاني، ایراني او امریکایي استازو ترمنځ په واشنګټن کې خبرې پیل شوې. د امریکا متحدو ایالتونو وړاندیز وکړ چې یو فني کمیسیون دې وټاکل شي چې نوموړې موضوع په سیمه کې وڅېړي او خپله پرېکړه دې دواړو هېوادونوته واوروي.
فني متخصصان د امریکا د متحدو ایالتونو، کاناډا اوچیلي له پوهنتونونو څخه و ټاکل شول. هغوی د هلمند د وادي انکشافي پروژه وکتله. د ګولډسمت او مک مهان تاریخي اسناد یې وکتل او په پای کې یې وویل: د هلمند د وادي پروژه د سېلابونو د کنټرول او د کال په اوږدو کې د هلمند د سیند د جریان د تنظیم لپاره جوړه شوې ده او د سیند اوبه یې نه دي کمې کړي، بلکې په ټول کال کې یې په یوه ټاکلي اندازه ساتي.
د ایران سهم باید د کال په اوږدو کې د اوبو د جریان د توپیر له مخې د هرې میاشتې لپاره وټاکل شي.
د افغانستان دولت په ۱۳۲۱ هجري لمریز کال کې د درې کسیز کمیسیون رپورټ ومانه او د ایران د هغه وخت له شاهي دولت سره یې د خبرو د پیل لپاره چمتووالی وښود.

## ب: د فخري سرحدي کرښه:

له سیاه کوه څخه د ذوالفقار تر درې پورې چې زموږ د هېواد په شمال لویدیځ کې ده، څوځلې د افغانستان او ایران ترمنځ سرحد وټاکل شوه. خو په دې برخه کې کومه غوڅه پرېکړه ونشوه. دواړو دولتونو په ۱۳۱۳ هجري لمریز کال کې د ترکیې له دولت څخه د منځګړیتوب غوښتنه وکړه. د ترکیې دولت جنرال فخرالدین التایي د سرحدي اختلافونو د حل لپاره وټاکه. جنرال فخرالدین التایي له ډېرې څېړنې او مطالعې څخه وروسته خپله پرېکړه د افغانستان او ایران دولتونو ته واو روله.
په دې ترتیب، د افغانستان لویدیځ سرحد، چې د فخري د کرښې په نوم یادېږي، د سیاه کوه له سیمې څخه د ذوالفقار تر درې پورې د شمال په استقامت تثبیت او وټاکل شو. له سیاه کوه څخه تر اسلام قلعه

پورې سرحدي کرښه د ځمکې پرمخ او له اسلام قلعه څخه د ذوالفقار تر درې پورې د هریرو سیند د افغانستان او ایران ترمنځ سرحدي کرښه جوړوي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي پر ډلو وېشل کېږي. هره ډله پر لاندې یوه موضوع پخپلو کې بحث کوي او پایلې یې ټولګیوالو ته وړاندې کوي.

- د سیستان د سیمې څرنګوالی په هکله معلومات.
- د افغانستان او ایران د دولتونو د سرحدي کرښو د ټاکلو په هکله ولې د هند له وایسرای څخه مرستې غوښتنه وکړه او د ګولډ سمت د کار پایله څر نګه شوه؟
- له اصلي مسیر څخه د نادعلي د رود انحراف څه ستونزې رامنځته کړې او موضوع په څه ډول حل شوه؟
- د ایران دولت د ملګرو ملتونو د امنیت شورا ته ولې ګیله وکړه او پایله یې څه شوه؟
- د فخري سرحدي کرښه څرنګه وټاکل شوه؟



## پوښتنې:

۱- د افغانستان او ایران ترمنځ د سیستان د سیمې په سر اختلاف ولې راپورته شو؟

۲- د سیستان د حوزې په باره کې معلومات ورکړئ.

۳- د مک مهان سرحدي کرښه د کومو سیمو ترمنځ ده؟

۴- د فخري سرحدي کرښه د (                ) او (            ) سیمو ترمنځ ده.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ او د مکمهان او فخري کرښې پکې وښیئ.

# ۱-٦ اداري تشکيلات




د امير امان الله خان په وخت کې د افغانستان ملکي وېش

د غازي امان الله خان په دوره کې افغانستان پر پنځو ولايتونو او څلورو اعلی حکومتونو وېشل شوی و. د افغانستان ولايتونه کابل، کندهار، هرات، ترکستان، قطغن او بدخشان او اعلی حکومتونه يې د ختيځې سيمې اعلی حکومت، د سويلې سيمې اعلی حکومت، د ميمنې اعلی حکومت او د فراه اعلی حکومت وو.

له ۱۳٤۳ لمريز کال څخه مخکې د ځينو ولايتونو ساحې دومره پراخې وې چې د هغو اداره د طبيعي خنډونو لکه: غرونه، پراخې اوسوځوونکې دښتې، تنګې او صعب العبوره درې او د هغه وخت د لېږد او رالېږد د وسايلو له کبله زياتې ستونزې رامنځته کړې وې. د دولت د کارکوونکو مصروفيت دومره زيات و چې په ډېر مشکل سره د خلکو عريضو او شکايتونو ته غوږ نيول کېده.

عرفاني او ټولنيزو موضوعګانو ته کم پام کېده. نو په ۱۳٤۳ لمريز کال کې د لومړي ځل لپاره د اساسي قانون د تطبيق او د ولسواکۍ د تعميم لپاره د هېواد په اداري تشکيلاتو کې اساسي تغييرات راغلل او افغانستان پر ۲۹ اداري واحدونو يا ولايتونو ووېشل شو.

هر ولايت د والي په واسطه، چې له مرکز سره مستقيمې اړيکې لري، اداره کنټرول کېده. د هر ولايت اداري او قضائي چارې پخپل وار د خلکو د ارامۍ او آسانتياوو لپاره په کوچنيو اداري واحدونو ووېشل شوې. هر ولايت پر ولسواليو او کليو وېشل شوی و. علاقه دارۍ اوس له منځه تللي او په ولسواليو بدلې شوې دي. د هرې ولسوالۍ په سر کې ولسوال دی. د ولسواليو اداره له ولايت او د ولايت اداره له مرکز سره اړيکې لري. د اجرائي قوې نور غړي د وزارتونو له خوا ټاکل کېږي او خپلې دندې په ولايت کې د والي د نظر لاندې او په ولسواليو کې د ولسوال تر نظر لاندې سرته رسوي.

والي د قانوني کارونو د ترسره کولو په برخه کې د محلي ارګانونو رياست او جمهوري رياست ته مسؤوليت لري او ځواب وايي.

په ۱۳۷۰ لمريز کال کې د هېواد په اداري وېش کې ۳۲ ولايتونه، ۹۴ ښاري ساحې او ۲۹۴ ولسوالۍ او ۳۳،۵۰۰ اصلي او فرعي کلي شامل وو. له ۱۳۸۵ لمريزکال څخه وروسته دوې ولسوالۍ، چې يوه پنجشير او بله يې دايکندي وه، د ولايتونو کچې ته لوړې شوې.

• په دې وروستيو کلونو کې د افغانستان اسلامي جمهوريت په ۳۴ ولايتونو او ۳۶۴ ولسواليو او څو موقتو ولسواليو وېشل شوی دی. د افغانستان تر ټولو لوی ښار د کابل او د هېواد پلازمېنه ده. لاندينی جدول د هېواد ولايتونه او د ولايتونو مرکز ونه ښيي.

| شمېره | د ولايت نوم | د ولايت مرکز | د ولايت مساحت په کيلو متره مربع |
|---|---|---|---|
| ۱ | کابل | د کابل ښار | ۴۵۲۳/۵۸ |
| ۲ | قندها ر | د کندهار ښار | ۵۴۸۴۴/۵ |
| ۳ | هرات | د هرات ښار | ۵۵۸۶۸/۵۳ |
| ۴ | بلخ | د مزارشريف ښار | ۲۰۷۹۷/۶۳ |
| ۵ | ننګرهار | د جلال آباد ښار | ۷۶۴۱/۰۵ |
| ۶ | پکتيا | د ګرديز ښار | ۵۵۸۳/۱۵ |
| ۷ | غزني | د غزني ښار | ۲۲۴۶۰/۵۳ |
| ۸ | پروان | د چاريکارو ښار | ۵۷۱۵/۰۵ |
| ۹ | هلمند | د لښکرګاه ښار | ۵۸۳۰۵/۰۷ |
| ۱۰ | بغلان | د پلخمري ښار | ۱۸۲۵۵/۲۴ |
| ۱۱ | فارياب | د ميمنې ښار | ۲۰۷۹۷/۶۳ |
| ۱۲ | نيمروز | د زرنج ښار | ۴۲۴۰۹/۵۳ |
| ۱۳ | بدخشان | د فيض آباد ښار | ۴۴۸۳۵/۹۱ |

| ۱۴ | جوزجان | د شبرغان ښار | ۱۱۲۹۱/۵۲ |
|---|---|---|---|
| ۱۵ | بامیان | د بامیانو ښار | ۱۸۰۲۹/۱۶ |
| ۱۶ | زابل | د قلات ښار | ۱۷۴۷۱/۸۰ |
| ۱۷ | غور | د فیروزکوه (چغچران) ښار | ۳۶۶۵۷/۴۲ |
| ۱۸ | بادغیس | د قلعه نو ښار | ۲۰۷۹۴/۰۱ |
| ۱۹ | سمنگان | د ایبک ښار | ۱۳۴۳۷/۸۱ |
| ۲۰ | تخار | د تالقان ښار | ۱۲۴۵۷/۸۲ |
| ۲۱ | کندز | د کندز ښار | ۸۰۸۰/۸۶ |
| ۲۲ | لغمان | د مهترلام ښار | ۳۹۷۷/۰۸۷ |
| ۲۳ | فراه | د فراه ښار | ۴۹۳۳۹/۱۱ |
| ۲۴ | پکتیکا | د شرنې ښار | ۱۹۵۱۵/۸۶ |
| ۲۵ | کونړونه | د اسعد آباد ښار | ۴۹۲۵/۹۰ |
| ۲٦ | لوگر | د پل علم ښار | ۴۵۶۸ |
| ۲۷ | میدان وردگ | میدان ښار | ۱۰۳۴۸/۳۲ |
| ۲۸ | کاپیسا | د محمود راقي ښار | ۱۹۰۸ |
| ۲۹ | نورستان | د پارون ښار | ۹۲۶۶/۷۴ |
| ۳۰ | خوست | د متون ښار | ۴۲۳۵/۲۶ |
| ۳۱ | سرپل | د سرپل ښار | ۱۶۳۸۵/۵۷ |
| ۳۲ | ارزگان | د ترین کوټ ښار | ۱۱۴۷۳/۶۷ |
| ۳۳ | پنجشیر | د بازارک ښار | ۳۷۷۱/۶۲ |
| ۳۴ | دایکندي | د نیلي ښار | ۱۷۵۰۱/۳۶ |


په اوسني وخت کې د افغانستان ملکي وېش



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د لاندنيو موضوعاتو په باره کې پخپلو کې بحث وکړي.
یو تن دې د ډلې په استازیتوب خپله موضوع ټولګیوالو ته شرحه کړي.

- د اماني دورې اداري تشکیلات:
- په ۱۳۴۳ هجری لمریز کال کې په اداري تشکیلاتو کې بدلون ولې راغې.
- د ولایتونو او ولسوالیو اداره څه ډول ده؟
- د هېواد د ولایتونو، ولسوالیو او کلیو شمېر څومره دی؟ وروستنۍ ولسوالی، چې د ولایت سطحې ته لوړې شوې دي، نومونه یې واخلئ.



## پوښتنې:

۱- د غازي امان الله خان د دورې د ولایتونو نومونه واخلئ.
۲- د غازي امان الله خان د دورې اعلی حکومتونه کوم دي؟
۳- کوم ولایتونه د هېواد په شمال کې دي.
۴- د افغانستان د مرکزي ولایتونو نومونه واخلئ.
۵- د کابل، بلخ، ننګرهار، او هرات ولایتونو د مرکزونو نومونه واخلئ.
۶- د هېواد لویدیځ ولایتونه په نقشه کې وښیئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ او په هغې کې د هېواد د لویو ولایتونو او ښارونو موقعیت و ټاکئ.

## ۲ - ۱ د هېواد په پرمختيا کې د نفوسو اهميت.




### د هېواد په پرمختيا کې د نفوسو اهميت:

نفوس د هېواد ټولو اوسيدونکو ته وايي چې د بېلو لاملونو له مخې په بېلابېلو ځايونو کې استوګن او ځای پرځای شوي دي. د نفوسو شمېر په ځينو ځايونو کې لږ او په ځينو ځايونو کې ډېر دی.
نو د نفوسو تناسب د استوګنې پرسيمه باندې د اهميت وړ دی.
د نفوسو د ګڼوالي له پاره بايد د يوې سيمې نفوس د هغې پر مساحت ووېشو. د افغانستان نفوس په ۱۳۹۷ لمريز کال کې ۳۰ میلیونه تنه اټکل شوی دی چې په ټول هېواد کې ژوند کوي. اوسنی نفوس په ټول هېواد کې يو ډول نه دی، بلکې اقليمي، د ځمکې د جوړښت شرايط او نور اقتصادي، بشري او سياسي لاملونه د نفوسو په ساحوي توپير کې اغېز لري.
همدارنګه، پورتنيو لاملونو ته په پام سره په حاصلخېزو سيمو، لکه: ننګرهار، لوګر، کاپيسا، لغمان، او پروان کې زيات نفوس ځای پرځای شوي دي. په داسې حال کې چې د بکوا او مارګو په سوځوونکو دښتو کې د نفوسو شمېر ډېر لږ دی.
په هېواد کې پرمختيايي پلانونه د نفوسو د زياتوالي له مخې په پام کې نيول شوي دي.
د افغانستان نفوس په صنعتي مرکزونو، اقليمي سيمو، ښارونو او کليو کې په مختلفو اندازو ځای پر ځای شوي دي. د خلکو د ژوندانه لپاره د کرنې په پرمختيا او د لومړنيو توکو د توليد پر بنا ۸۰ سلنه خلك په کليو او ۲۰ سلنه نور په ښارونو کې ژوند کوي. په دې وروستيو کلونو کې د وخت په تېريدو او د سياسي بدلونونو پر اساس د نفوسو ګڼه ګوڼه په کابل، جلال آباد، مزار شريف، هرات او ځينې نورو ښارونو کې زياته شوې ده.

- د اقتصادي او صنعتي لاملونو له کبله د هېواد ځينې وګړي په صنعتي مرکزونو کې ژوند کوي؛ لکه د پلخمري د نساجۍ فابريکې د بغلان د قند فابريکې او داسې نورو کارخانو په شاوخواکې استوګن دي.
- کرنيزې پروژې لکه د هلمند، د هلمند او غازي آباد فارمونه، د هلمند، ناد علي او داسې نورې پروژې د زياتو نفوسو د ځای پرځای کېدنې لامل شوي دي.
- د کرنيزو ځمکو د خړوبولو لپاره د سيندونو شتون د کرنيزو کليو د پرمختګ سبب شوی. همدارنګه، سوداګريز بندرونه لکه تورخم، اسلام کلا، حيرتان، سپين بولدك او داسې نور د ډېرو نفوسو د ځای پرځای کيدنې سبب شوي دي.
لنډه دا چې د سوځوونکو شګو او يا غرنيو لوړو برخو په پرتله په هوارو او مناسبو اقليمي سيمو کې د نفوسو د مېشته کيدنې مينه ډېره وي.

## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي. هره ډله دې پر لاندې يوه موضوع بحث وکړي او پايلې دې په ټولګي کې شرحه کړي.
۱- په سياسی لحاظ د نفوسو ګڼوالی.
۲- په اقتصادي لحاظ د نفوسو ګڼوالی.
۳- په طبيعي لحاظ د نفوسو ګڼوالی.

## پوښتنې:

۱- نفوس تعريف کړئ.
۲- لانديني ولايتونه ډېرګڼ نفوسه دي.
الف: کابل، کاپيسا، ننګرهار، لوګر، او پروان　　ب: تخار، کونړ او لغمان
ج: لوګر، ميدان وردک او غزنی　　د: دايکندي، خوست، او پکتيا.
۳- آيا اقليم او بڼه خاوره د نفوسو په ګڼوالي کې اغېز لري؟
۴- په سوځوونکو دښتو کې د نفوسو ګڼوالی څه ډول دی؟ د دغې موضوع بېلګه ووایاست.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د نفوسو د وېش او ګڼوالي لاملونه کوم دي؟ نومونه يې واخلئ.

# ۲-۲ احصایه اود نفوسو جغرافیایي وېش

د خپل استوګنځي په باره کې فکر وکړئ او ووایاست چې نفوس یې ولې زیات شوی دی؟ افغانستان له ډېرو پخوا دورو څخه د خلکو د استوګنې ځای او بېلابېلو قبیلو ته یې د غرونو په شنو لمنو، د ویالو او سیندونو په غاړو کې ځای ورکړی دی او د افغانستان په تاریخ کې یې د لرغوني آریایي، مدنیت بنسټ ایښی دی چې تاریخي جغرافیه د دې حقیقت ښکارندویه ده.

د دې هېواد تاریخي لرغونتوب، د نفوسو استقرار چې د لویو مد نیتونو او د تاریخي ښارونو د تأسیس له مخې لکه بلخ پیل کېږي، تقریباً له ۸۰- ۸۵ سلنه نفوس یې په کرنه او د هغې په اړوندو کارونو بوخت دي. تر اوسه هم کرنه د نفوسو د تمرکز او وېش ستر لاملونه ګڼل کېږي. له همدې امله د فزیکي چاپېریا ل جوړښت، د اقلیم ډول، هایدروګرافي ځانګړتیاوو، د انساني نفوسو د تمرکز او استوګنې لپاره په بېلابېلو تناسبونو شرایط برابر کړي دي. زموږ په هېواد کې هم د نرۍ د نورو سیمو په شان، سیمې په بېلابېلو تناسبونو رامنځته شوي دي. زموږ په هېواد کې د نرۍ د نورو سیمو په څېر، درې، وادۍ، جلګې او د سیندونو غاړو د خلکو د بېلا بېلو ډلود استوګنې لپاره وړ چاپېریال رامنځته کړي دی او د کرنې او ژوندانه له پاره یې مساعدې برخې جوړې کړي دي چې د کرنې، صنعت، مالدارۍ او د صنعتي فعالیت د پر اختیا له لپاره ګټورې دي. د استوګنې نا مناسبې سیمې یې د استوګنې په سیمو بدلې کړې دي. په هېواد کې د نفوسو تمرکز په هغو سیمو کې چې لوړوالی یې له ۲۵۰۰ مترو څخه زیات دی، محدود دی خو هغه سیمې چې مساعد اقلیم، ښه خاوره او ډېرې اوبه لري، زیات خلك پکې استوګن دي. په همدې ډول، هغه سیمې چې له ۱۰۰۰ مترو څخه زیات لوړوالی لري په ټول هېواد کې پراخې او هوارې سیمې دي چې د نفوسو د ځای پر ځای کېدنې لپاره یې ښه شرایط برابر کړي دي پرته له صحرایي سیمو څخه. د دې سیمو زیات نفوس په کرنه او مالدارۍ او نورو تجارتي او صنعتي چارو بوخت دي.

د افغانستان اداري واحدونه څرګندوي چې د کرنې له مخې زیات اهمیت لري او زیات نفوس یې ځانته جلب کړی دی او د نورو سیمو په تناسب یې ګڼ نفوسه سیمې جوړې کړې دي. په همدې ډول یې په پورتنیو نقطو کې تجاري، اقتصادي او صنعتي لوی ښارونه او داسې نورې سیمې جوړې کړي دي چې د زیاتو نفوسو په تمرکز کې اغېز لري.

صنایع او د فابریکو جوړول، عرفاني او فرهنګي مرکزونه، اداري، نظامي او توریستي واحدونه هم د نفوسو د راټولیدو او تمرکز لامل شوي دي چې کولی شو د کابل، ننګرهار، کاپیسا او نورو ولایتونو څخه یې یادونه وکړو.

د ا وبو شتون د نفوسو په ګڼو الي کې ډېر اغېز لري. که د سیندونو، د چینو او کاریزونو غاړې وګورو، دغو سیمو د نورو سیمو په نسبت زیات نفوس ځانته جلب کړي دي. په تېره بیا د سیندونو، کاریزونو او چینو منځنۍ او وروستنۍ برخې د نفوسو په تمرکز کې له ډېرو پخوا کلونو څخه لویه برخه درلوده.

د نفوسو گڼوالی په دې نقطو کې څرگنده ترسترگو کېږي. د مثا ل په ډول: د لوگر، پنجشیر، الیشنگ، الینگار، کونړ، هریرود سیندونه او مرستیالان یې، د هلمند د سیند ساحل او مرستیالان یې لکه ترنک، ارغستان او ارغنداب، د مرغاب سیند او مرستیالان یې، د کندز سیند، فراه رود، خاشرود او ادرسکن او د آمو د سیند کیڼ ساحل د افغانستان ډېرې گڼ نفوسه سیمې دي.



## په ټولگي کې فعالیت:

زده کوونکي پر ډ لو وېشل کېږي. هره ډله د لاندې پوښتنو په باره کې فکر کوي او نتیجه یې د ډلو استازي نورو ته تشریح کوي.

د کومو دلیلونو له مخې د نفوسو گڼوالی په یوه ځانگړې سیمه کې زیات وي؟ په قناعت بخښونکو د لیلونو یو له بل سره بحث وکړئ.



## پوښتنې:

۱. د هغو سیندونو نومونه واخلئ چې د نفوسو د گڼوالي باعث کېږي.

۲. د هلمند سیند لاندې اهمیت لري:

الف: اقتصادي، کرنیز، صنعتي او تولیدي　　　ب: اقتصادي او انرژي

ج: اقتصادي او شخصي　　　د: ټول سم دي

۳. هغه سیمې چې له ۲۵۰۰ مترو څخه زیات لوړ والی لري د نفوسو ځای پر ځای کیدنه په کې څرنگه ده؟

٤. د هېواد د اوسیدونکو په ژوندانه کې د کاریزونو اهمیت بیان کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعالیت:

کوم جغرافیایي شرایط د ښارونو د جوړېدو او د نفوسو د گڼو الي سبب شوي دي؟
په کتابچو کې د ځواب له لیکلو وروسته یې نورو ته تشریح کړئ.

# ۲-۳ د نفوسو وده او منځنی عمر




**پوهېږئ چې د نفوسو وده او منځنی عمر زموږ په گران هېواد کې څومره دی؟**

د نفوسو نسبي وده د یوه هېواد د خلکو زیاتوالي ته ویل کېږي. د خلکو د شمېر او د نفوسو د نسبي ودې په باره کې بنسټيز ارقام او څېړنه اساسي اړتیا ګڼل کېږي. په دې ډول کولی شو چې د ډیموګرافي له مخې چې د نفوسو وده، مړینه (نارینه او ښځینه) او نور ارقام هر وخت د څېړونکو او مؤسساتو په واک کې ورکړو. په مخ پر ودې هېوادونو کې د نفوسو وده د ټولنیزو، مذهبي او اقتصادي مقرراتو تابع ده.

- افغانستان هم د همغې ډلې یو هېواد دی.

له همدې امله، په افغانستان کې د نفوسو منځنی او عادي و ده ۲,۰۳سلنه محاسبه شوې ده. له دې

سره سره چې دقيقه احصائيه نشته. د افغانستان د نفوسو په هکله اټکلي ارقام په رسمي ډول د لومړي ځل له پاره په ۱۳۱۵ لمريز کال کې خپاره شول. د افغانستان ټول نفوس هغه وخت لس ميليونه او اويا زره ښودل شوي دي.

د پلان وزارت د ۱۳۲۹ لمريز کال د احصائيې له مخې د ټول هېواد نفوس ۱۲ ميليونه اټکل کړي دي. د همدې کلونو د نفوسو وده پر اټکل ولاړه ده.

بشپړه سرشمېرنه د ۱۳۵۸ لمريز کال د جوزا د مياشتې پر ۲۵ نېټه پيل او د چنګاښ د مياشتې پر ۱۴ نېټه پای ته ورسيده. له دې سره سره چې دقيقه احصائيه واخستل شوه، خو بيا هم ويې نه شو کولی چې د هېواد د ټولو سيمو احصائيه واخلي. د ۱۳۵۸ لمريز کا ل د احصائيې له مخې د افغانستان ټول نفوس۱۵.۹٤ ميليونه تنه اټکل شوی چې ۱۳.۴ ميليونه تنه يې دايمي استوګن او ۲.۵۶ ميليونه تنه نور يې کوچيان وو چې د ټول نفوس ۱۵.۴ سلنه په ښارونو او ۸٤.۶ سلنه په کليو کې ژوند کاوه.

په دې کال کې په کليو يا ښارونو کې مېشت نفوس، چې ټولې کورنۍ ۱،۲ ميليونه وې، په منځني ډول د هرې کورنۍ غړي ۶ تنه ثبت شول.

په داسې حال کې چې د هېواد نفوس په ۱۳۸۸ هـ ش کال کې ۲٦ ميليونه تنه وو؛ په ۱۳۹۷ هـ ش. کال کې ۳۰ ميليونه تنه اټکل شوي دي.

په ۱۳۸۶ کال کې، د عمر له مخې د نفوسو د ګروپونو بېلوالی



## اضافي معلومات

له ۱۳۴۰ څخه تر ۱۳۷۰ لمریز کلونو پورې د نفوسو د زیاتوالي معلوماتي جدول.

| ګڼه | کال | د ودې سلنه |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ۱۳۴۰ | ۳,۱ |
| ۲ | ۱۳۴۸ | ۳ |
| ۳ | ۱۳۵۰ | ۲,۸ |
| ۴ | ۱۳۵۹ | ۲,۶ |
| ۵ | ۱۳۷۰ | ۱,۹ |
| ۶ | ۱۳۸۶ | ۲,۰۳ |



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د نفوسو د اهمیت په باره کې بحث وکړي او د هېواد د پرمختیا په باره کې دې د هغه اغېز پخپلو کې سره شریک کړي.



## پوښتنې:

۱- د مخ پر ودې هېوادونو د نفوسو وده څرنگه ده؟

۲- د نفوسو وده څه ارزښت لري؟

۳- د افغانستان د نفوسو احصائیه اټکلي ده که و اقعي؟

۴- په کومو هېوادونو کې د نفوسو کنټرول مجاز نه دی؟



## له ټولگي څخه بهر فعالیت:

زموږ په هېواد کې د نفوسو وده د کومو لاملونو تابع ده؟ کله چې مو د لیلونه په کتابچه کې ولیکل، بله ورځ پرې په ټولگي کې بحث وکړئ.

# د نفوسوڅرنګوالی او په هېواد کې قومي جوړښت

په افغانستان کې د نفوسو څرنګوالی، د لاندنیو مطالبو له مخې مطالعه او ارزولی شو.

• د عمر له مخې.

• د جنس له مخې.

د نفوسو څرنګوالی د ټولنیزو او اقتصادي خدمتونو (کرنې، کانونو او داسې نورو) له مخې مطالعه کېږي.

د ۱۳۵۸ لمریز کال راهیسې د هېواد په سطحه کومه سر شمېرنه نه ده شوې. له همدې امله په افغانستان کې د نفوسو د وېش، ترکیب د ودې د اندازې او اقتصادي او ټولنیزو ځانګړتیاوو په هکله مستند احصائیوي معلومات نشته. خو په ۱۳۸۳ لمریز کال کې د نفوسو د څرنګوالي لومړیتوب د جنس (نارینه او ښځینه) له مخې مطالعه شو.

• په ۱۳۸۳ لمریز کال کې د جنس له مخې د نفوسو د څرنګوالي لومړیتوب احساس شو. د اتمې لسیزې په پیل کې ښځینه وو ته پام وشو، چې د هغوی فعاله ونډه اخیستنه په ټولو برخو کې څرګنده ښکاري. اوس د پام وړ شمېر ښځې په شورا (ولسي او مشرانو جرګه) کې دنده ترسره کوي. په همدې ډول، د ښځو ونډه په دولتي ادارو، په تېره بیا د پوهنې او اقتصاد په بېلابېلو سکتورونو کې زیاته شوې ده.

• مخ پر ودې هېوادونو په ډله کې زموږ د هېواد د نفوسو وده (د زېږېدنې څخه تر ۱۵ کلنۍ پورې) ۴۴,۶ سلنه ، د ( ۱٦ څخه تر ۶۰ کلنۍ پورې) ۵۲.۹ سلنه او د ۶۵ کلنۍ څخه پورته ۲.۶ سلنه اټکل شوې ده.

په هېواد کې اقتصادي فعاله نفوس تر (۱۵- ۶۵) [۱] کلنۍ پورې دی چې د ۸۰ سلنه یې د کرنې او مالدارۍ په برخه کې او پاتې نورېې په صنایعو، کانونو او ټولنیزو خدمتونو کې بوخت دي او له ۶۵ کلنۍ څخه پورته غیر فعال اقتصادي نفوس تشکیلوي.

۱- د حقوق بشر سازمان د کوچنیوالي عمر د مشغولیت له پلوه ۱۸ کلني غوره کړی دی.

په افغانستان کې د جنس له پلوه د نفوسو ځرنګوالی:

| کال | ښاري نفوس | | کلیوالي نفوس | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۳۸۸ | ښځې | نارینه | ښځې | نارینه |
| | ۲۵۰۳۰۹۰ تنې | ۲۶۵۶۲۰۰ تنه | ۸۷۵۲۳۰۰ تنې | ۹۱۲۷۴۰۰ تنه |
| | ۵۱۵۹۲۰۰ تنه | | ۱۷۸۷۹۷۰۰ تنه | |

د لوست د وروستنۍ برخې د اضافي معلومات تر سرلیک لاندې جدول کې د عمر له پلوه د نفوسو د ترکیب ځرنګوالی ښه کتلی شئ.

## په هېواد کې قومي جوړښت او د قومونو جغرافيايي وېش:

• په افغانستان کې د مېشتو قومونو جغرافيايي وېش په څه ډول دی؟

د افغانستان اوسیدونکي د تاریخي دودونو او د اساسي قانون پر اساس ټول افغانان دي. خو د بشري جغرافيې له مخې زموږ په هېواد کې بېلابېل قومونه ژوند کوي چې د هغو په اړه لنډه یادونه کوو.

په دې خاوره کې پښتانه د تاریخي اسنادو له مخې د اریایانو ډېر پخوانی توکم بلل کېږي. هغه ژبه چې پرې خبرې کوي، د پښتو په نوم یا دېږي او د نورو اریایي ژبو په څېر ده.

د یونان وتلي مؤرخ هیرودت پښتانه د پکت تویس او د دوی سیمې د پکتیس په نوم یاد کړې دې. پښتانه په ټول افغانستان کې استوګن دي، خو زیات یې په ختیځ کابل او د کابل په ګاونډیو ولایتونو، په جنوبي، جنوب ختیځ، ختیځ او جنوب لویدیځ کې ژوند کوي. په شمالي ولایتونو کې هم ګڼ شمېر اوسېږي.

• تاجکان د پښتنو په څېر د دې سیمې د اریایانو ډېر پخوانی قوم دی، چې په ټول هېواد کې شته خو زیات قومونه یې د هېواد په شمال کې له بدخشان څخه تر هرات او د هندوکش په جنوب کې له پروان څخه تر کابل پورې ژوند کوي او دري ژبه خبرې کوي.

• ازبکان او ترکمنان د دې هېواد پخواني اوسیدونکي دي او د هېواد په شمال او شمال لویدیځ کې ژوند کوي. ازبک قرغز، قزاق او ترکمن په ترکي او ازبکي ژبو خبرې کوي.

• هزاره ګان هم زموږ د هېواد پخواني اوسیدونکي دي چې په هزاره ګي لهجه په دري ژبه خبرې کوي. په بامیانو او مرکزي لوړو سطحو کې اوسېږي.

• نورستانیان هم یو اریایي قوم دی او د دې هېواد اوسیدونکي دي. د نورستانیانو د اوسیدو سیمه نورستان او ژبه یې نورستاني ده. یو بل قوم چې اریایي نژاد لري، پشه یان دي چې په کونړ، کاپیسا او

لغمان کې ژوند کوي. ژبه يې  ختيځه اريايي ريښه لري.

• بل قوم چې اريايي نژاد لري، بلوڅ دي چې د کندهارپه جنوب او چخانسور کې ژوند کوي. ژبه يې بلوڅي ده په پښتو او دري هم خبرې کوي.

په همدې ترتيب، زمورږ په ګران هېواد  کې ځينې قزل باش، عرب اوسيدان هم ژوند کوي. په همدې ډول، ځينې هندوان او سکان هم په کابل، ننګرهار، کندهار، ګرديز، خوست او غزني کې  ژوندکوي چې د دې هېواد اوسيدونکي دي. د يادولو وړ ده چې ځينې نور قومونه هم شته چې پوره مطالعه او څېړنه غواړي.

## په تولګي کې فعاليت:

د نفوسو څرنګوالی څه مفهوم لري؟ هره ډله به په دې هکله بحث وکړي. د ډلې استازی دې هم ټولګيوالوته ووايي چې په هېواد کې د ميشتو قومونو په هکله بحث وکړي ا وخپل معلومات له نورو سره شريک کړي.

## پوښتنې:

۱. هغه قومونه چې په افغانستان کې ژوند کوي، نومونه يې واخلئ.

۲. د اضافي معلوماتو د جدول له مخې د په کار بوختو نفوسو سلنه پيدا کړئ

۳. د کوم عمر خلکو ته فعاله اقتصادي نفوس ويل کېږي؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

په افغانستان کې د استوګن قومونو په باره کې، له بېلابېلو سرچېنو څخه په ګټې اخيستې سره يوه لنډه مقاله وليکئ.

## اضافي معلومات

| ۱۳۸۶(۲۰۰۷-۲۰۰۸) | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ټول دایمي استوګن نفوس | | | | |
| نارینه (تنه) | ښځینه (تنې) | ټول نفوس (تنه) | سلنه | عمر (په کال) |
| ۱۱۷۸۳۶۰۰ | ۱۱۲۵۵۳۰۰ | ۲۳۰۳۸۹۰۰ | ۱۰۰ | |
| ۲۱۹۲۶۹۱ | ۲۳۲۱۸۷۱ | ۴۵۱۴۵۶۲ | ۲۰ | ۰۴-۰۰ |
| ۱۷۵۰۷۱۷ | ۱۶۹۴۹۶۲ | ۳۴۴۵۶۷۹ | ۱۵ | ۰۹-۰۵ |
| ۱۳۹۹۴۵۶ | ۱۲۵۳۶۸۷ | ۲۶۵۳۱۴۳ | ۱۱ | ۱۴-۱۰ |
| ۱۱۴۸۴۳۷ | ۱۰۱۷۴۴۴ | ۲۱۶۵۸۸۱ | ۹ | ۱۹-۱۵ |
| ۹۵۶۱۸۶ | ۹۰۴۷۱۲ | ۱۸۶۰۸۹۸ | ۸ | ۲۴-۲۰ |
| ۷۶۰۹۷۲ | ۷۷۹۷۲۱ | ۱۵۴۰۶۹۳ | ۷ | ۲۹-۲۵ |
| ۶۱۰۴۱۸ | ۶۷۶۸۰۵ | ۱۲۸۷۲۲۳ | ۵ | ۳۴-۳۰ |
| ۵۳۹۴۱۳ | ۵۹۵۲۷۱ | ۱۱۳۴۶۸۴ | ۵ | ۳۹-۳۵ |
| ۴۹۴۷۴۳ | ۴۸۶۵۳۴ | ۹۸۱۲۷۷ | ۴ | ۴۴-۴۰ |
| ۴۵۰۲۲۱ | ۴۰۲۴۶۱ | ۸۵۲۶۸۲ | ۴ | ۴۹-۴۵ |
| ۳۹۶۶۸۸ | ۳۲۳۹۲۵ | ۷۲۰۶۱۳ | ۳ | ۵۴-۵۰ |
| ۳۲۸۵۴۸ | ۲۵۱۶۲۶ | ۵۸۰۱۷۴ | ۳ | ۵۹-۵۵ |
| ۲۵۶۲۵۸ | ۱۹۰۹۰۶ | ۴۴۷۱۶۴ | ۲ | ۶۴-۶۰ |
| ۴۹۸۸۵۲ | ۳۵۵۳۷۵ | ۸۵۴۲۲۷ | ۴ | ٦۵ کلن او له هغه څخه پورته |

**نوټ**: د کوچیانو ۱,۵ میلیونه نفوس پکې شامل نه دي.

یوولسم لوست:

## ۲-۵ کورنی او بهرنی لېږد او د نفوسو ځای پر ځای کېدل




د هغو مهاجرتونو د انګېزو په هکله معلومات لرئ چې زموږ له هېواده شوي دي؟

په هېواد کې دننه او له هېواد څخه بهرته مهاجرتونه د سیاسي او ټولنیزو ستونزو، تاریخي او د طبیعي پېښو د اغېزو له مخې کېږي چې انګېزې یې په لاندې ډول دي:

• **سیاسي لېږد**: سیاسي لېږدېدنه هغه وخت کېږي چې فکري او عقیدتي ازادي موجوده نه وي؛ د بېلګې په توګه، له ۱۳۵۷ لمریزکال څخه وروسته د روس د تهاجم او تېري له امله د افغانانو ډېر لوی مهاجرتونه، چې په نړۍ کې ساری نه لري، نورو هېوادونو او لویو وچوته شوي دي، چې شمیر یې له پنځه میلیونو څخه زیات دی.

• **اقتصادي مهاجرتونه**:

د کليو او د کوچنيو او لويو ښارونو خلک لويو صنعتي ښارونو ته  د کار او دندو د موندلو او د شتمنيو د ترلاسه کولو او خوندي ژوند لپاره مهاجرت کوي. پورتنيو لاملونوته په پام سره د کليو خلک ښارونو، لکه: کابل، کندهار، هرات، مزار شريف او نورو صنعتي ښارونو ته مهاجرت کوي چې دغه کار لا  تر اوسه دوام لري.

• **تاريخي مهاجرتونه**:

په ډېرو پخوانيو وختونو کې اريايان له بلخ (بخدي) څخه شاوخوا سيمو ته تر هند او فارس پورې مهاجر شول. او وروسته يونانيانو، کوشانيانو او مسلمانانو يو پر بل پسې مهاجرت وکړ.

• هغه مهاجرتونه چې د طبيعي پېښو او وچکاليو په سبب رامنځته کېږي، مثلاً په ۱۳۴۹ لمريز کال کې د وچکالۍ له امله زموږ هېوادوال د خپلو کورونو پرېښودلو ته اړشول چې د بادغيس، ارزگان او هزاره جاتو لوړه سطحه په دې ډله کې راځي.

• موسمي مهاجرتونه د تودو او سړو سيمو ترمنځ کېږي؛ يعنې مهاجر په اوړي کې د څارويو د روزنې او همدارنګه د کرنې لپاره ګاونډيو سيمو ته مهاجرت کوي. د هېواد کوچيان يې ښه مثال دي.

## • د مهاجرت اغېزې:

مهاجرتونو په افغاني مهاجرو مثبتې او منفي اغېزې کړې دي.

۱-د فعال اقتصادي نفوس له لاسه ورکول.

۲- د مغزونو تېښته (د پوهانو او ماهرو خلکو مهاجرت).

۳- منفي اغېزې لکه: په HIV او د پوستکي په ناروغيو اخته کيدل.

٤- باندنيو هېوادونو ته د سرمايې لېږدول.

٥-د انساني حقوقو تر پښو لاندې کېدل.

### مثبتې اغيزې لاندې دي:

۱- د خپل فرهنګ لېږدول او د نورو له فرهنګ سره بلدتيا.

۲- د خپلې ژبې رواجول او د نورو له ژبو سره بلدتيا.

۳- د نوې ټکنالوژي سره بلدتيا.

## په ټولګي کې فعاليت:

ز ده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د لاندې پوښتنو په باره کې بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپل معلومات په ټولګي کې وړاندې کړي.

۱. پر سياسي مهاجرت او د هغه پر انګېزه بحث وکړئ.

۲. زموږ هېوادوالو لويو او صنعتي ښارونوته ولې مهاجرت کړی؟

۳-آيا تاريخي مهاجرتونه زموږ په هېواد کې شوي دي؟

## پوښتنې:

۱-زموږ د ګران هېواد اوسيدونکي له کليو څخه ښارونوته ولې مهاجرتونه کوي.

۲- د مهاجرت منفي او مثبتې اغېزې بيان کړئ؟

۳-آيا زموږ هېوادوال اوس هم نورو هېوادونو ته مهاجرت کوي؟ ولې؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زموږ هېواد وال نورو هېوادونوته ولې مهاجر کېږي؟ په دې باره کې يوه مقاله وليکئ او د جغرافيې په را تلونکي ساعت کې يې ټولګيوالوته وړاندې کړئ.

# ۱,۳ دین



د کعبې معظمې د خونې انځور

د افغانستان زیاتره خلك د کوم دین او مذهب پیروان دي؟

انسانان له خپلو عقیدو سره ژوند کوي. زموږ خلك هم له ډېرو پخوا وختونو راهیسې د بېلابېلو دینونو پیروان وو. زموږ نېکونو اریایانو نوو سیمو ته له کوچېدو مخکې ساده آیین درلوده. دوی د طبیعت هغه عناصر چې پر ژوندانه یې اغېز درلوده، مقدس ګڼل. د افغانستان خلك، له دې سره سره چې په ختیځ کې د ویدي او برهمني زړې عقیدې پیروان وو، د هېواد په شمال لویدیځ کې زردشتي آیین رواج درلود. خو کله چې له میلاد څخه مخکې ۲۰۶ کال

کې اشوکا دبودایي آیین د تبیلغ او خپرولو له پاره ملا وتړله چې د هغه تاریخ نه زرکاله وروسته هم دې عقیدې او آیین د هېواد په ختیځ او شمال کې بشپړ رواج وموندە، چې د فکر، هنر او فرهنگ له پلوه یې د دې خلکو په ژوندانه ژوره اغېزه در لوده. بودایي آیین د اشوکا د نفوذ او سلطې په واسط د هندوکش له جنوب څخه ترکندهاره پورې خپورشو.

د اسلام د مقدس دین په ظهور سره بېلابېل دینونه لکه: زردشتي، بودایي او لږ څه آسماني دینونه، لکه یهودیت، مسیحیت په خراسان (افغانستان) کې پېروان او پلویان در لودل. خو داسې دین چې په ټول افغانستان کې عام رواج ولري، وجود نه در لوده. د هغه وخت خراسان یا اوسنی افغانستان د اسلام مقدس دین د منلو له پاره چمتو و. د حضرت عثمان (رض) په واکمنۍ کې، له ۲۵ هجري کال څخه وروسته د اسلامي فتوحاتو لمن افغانستان ته هم راورسېده. احنف بن قیس د هرات ښار ونیوه او خلك یې د اسلام په دین مشرف کړل. دریم خلیفه حضرت عثمان (رض) عبدالله بن عامر د لښکر مشر وټاکه. عبدالله بن عامر اسلامي امپراطوري ترختیځ پورې وغزوله. هغه سرخس، فاریاب، تالقان، کندهار او غزنی فتح او اسلام یې هلته خپورکړ. کابل یې یوکال محاصره کړ او په مشکل سره یې فتح کړ. د وخت په تېرېدو سره د افغانستان ټولې سیمې د اسلام په دین مشرف شوې .یوازې کافرستان، چې وروسته په نورستان یاد شو، پخوانی دین تر ډېرې مودې پورې وساته چې په ۱۹ م پېړۍ کې د امیرعبدالرحمن خان په دوره کې د اسلام په دین مشرف شول. د افغانستان د اسلامي جمهوري د دولت رسمي دین اسلام دی. د نورو دینونو پیروان، د خپلو دیني مراسمو په ترسره کولو کې د قانون له احکامو سره سم آز اد دي. په افغانستان کې هیڅ قانون نه شی کولی چې د اسلام د مقدس دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي.

په اوسني وخت کې د افغانستان خلك ۹۹.۶ سلنه د اسلام د مقدس دین پیروان دي.

ځینې هندوان او سکان په کابل، جلا ل آباد، کندهار، چاریکارو، ګردیز او نورو ښارونوکې اوسېږي چې اکثر یې سوداګر دي.

د افغانستان مطلق اکثریت خلك د حنفي مذهب پیروان دي او د تشیع مذهب پیروان هم لري. د افغانستان اهل تشیع په جعفري او اسماعلیه مذهبونو وېشل شوي دي.



## په ټولګي کې فعالیت:

ز ده کوونکي پر ډلو وېشل کېږي او هره ډله دې پر لاندې یوه موضوع بحث وکړي او د بحث نتیجه دې په ټولګي کې شرحه کړي.

- آریایانو کوم ایین درلود؟
- بودایي آیین څه وخت او چېرته خپور شو؟
- د اسلام دین په افغانستان کې څه ډول خپور شو؟



## پوښتنې:

لاندنې سمې او غلطې پوښتنې یوه له بلې څخه بېلې کړئ:

۱. آریایانو د طبیعت هغه عناصر، چې په ژوندانه کې یې اغېزناک وو، مقدس ګڼل.

۲. د افغانستان ټول خلک د یو مذهب یعنې اسلام پیرو دي.

۳. کومو خلکو په افغانستان کې د اسلام په خپرولو کې نقش درلوده؟

۴. په اوسني وخت کې د افغانستان خلک د کومو دینونو او مذهبو نو پیروان دي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د ټولنو په هوساینې کې د اسلام د مقدس دین د ښېګڼو په اړوند څو کرښې ولیکئ او ټولګیوالوته یې ولولئ.

## ۳ ــ ۲ ژبه




په افغانستان کې له دېرشو څخه زیاتې ژبې شته چې د هېواد په بېلابېلو سیمو کې خلک په بېلابېلو لهجو پرې خبرې کوي.

د افغانستان د ژبو اهمیت، لکه: د نړۍ د نورو ژبو په شان د ویونکو په شمېر پورې اړه لري.

د مثال په ډول، پښتو او دري د هېواد په پراخه ساحه کې عمومیت لري او خلک ورباندې خبرې کوي او د افغانستان تقریباً ټول خلک پرې پوهېږي؛ خو په اورمړي او عربي یوازې په څو محدودو کلیو کې خبرې کېږي.

اندو اروپایي ژبې په دوو اریایي (اریاني) او هندي ډلو وېشل کېږي. اریایي ژبې په عمومي ډول د هېواد په جنوب لویدیځ، شمال لویدیځ او شمال ختیځ کې زیاته رواج لري او مشهورې

ژبې يې پښتو، دري، بلوچي، اورمړي او پاميري غلچه يي يعنې غرنۍ ژبې دي. په هندي ژبو کې گوربتي، کلشه يي، تيرايي، سندي او پنجابي شاملې دي. رويدا ژبې چې د آريايي هندي گروپ ترمنځ يوه ځانگه ده چې کتي، بشکلي، واېگلي، پرسيني، اشکوني، پشه يي، پراچې اونورستاني په کې شاملي دي چې په عمومي ډول د نورستان او د هغه د شاوخوا خلك پرې خبرې کوي.

د افغانستان نورې ژبې ترکي او مغولي دي چې د وه لړۍ په کې شاملې دي. يوه لړۍ هغه ژبې دي چې په مرکزي آسيا پورې اړه لري لکه ازبيکي، قزاقي او قرغزي. دوهمه لړۍ يې په جنوب لويديځ پورې اړه لري چې ترکمني او آذري احتوا کوي.

## ۳.۳ د ژبو جغرافيايي وېش:

د افغانستان ژبې چې خلك پرې خبرې کوي، دا دي:

• **پښتو**: هغه کسان چې په پښتو خبرې کوي، تقريبا په ټول هېواد کې استوگن دي. خو زياتره پښتانه د افغانستان په ختيځو، جنوبي او جنوب ختيځو سيمو کې استوگنه لري. د اژبه ډېرې لهجې لري چې مشرقي او کندهاري لهجې يې يو له بل څخه ښې پېژندل کيږي.

• **دري**: د هېواد ډېره پخوانۍ ژبه ده. د هېواد زيات خلك په مختلفو لهجو له دې ژبې سره څه نا څه په ټول هېواد کې بلديت لري.

• **بلوڅي**: د هلمند، گودزېرې، صابري هامون او د هېواد د لويديځ سرحدونو ځينې خلك پرې خبرې کوي.

• **ازبکي**: د هېواد په شمالي ولايتونو کې ځينې خلك پرې خبرې کوي.

• **ترکمني**: د هېواد په شمال او شمال لويديځ کې د هرات تر ولايته پورې ځينې خلك پرې خبرې کوي.

• **پراچي**: د نجراب په يوه دره کې، چې د تگاب له اله ساى سره نښتې ده، ځينې خلك پرې خبرې کوي.

• منجي ژبه د بدخشان په منجان، واخي په واخان، سريگي د واخان په شمال، سنگليچي د

منجان په ختیځ او د بدخشان د زیباک په جنوب، زیباکي ژبه د بدخشان په زیباک، اشکاشمي د بدخشان په اشکاشم، شغني د بدخشان په اشکاشم او شغنان، رو شاني او اشري د بدخشان په لویدیځ او د پنج د سیند په غاړه کې او قرغزي ژبه په کوچني پامیرکې مرو جې دي.

• کټه وایګلي، شکوني او پاروني په نورستان کې، کورباتي ژبه په ختیځ نورستان، پشه يي ژبه په نورستان او د لغمان په درو، تګاب، نجراب، کوهستان، کاپیسا او پغمان کې، تیراهي د خیبر په لویدیځ او ډکه اوجتې د جټانو ژبه ده.

• په سندی، لهندا او پنجابی اهل هنود خبرې کوي.

• اورمړي په لوګر، براهوي د چخانسور د شورابک په شاوخوا سیمو کې رواج لري. مغلي او آذري ژبې اوس له منځه تللي دي. خو قزاقي د بلخ د ولایت په ځینو سیمو کې شته.

په پښتو او دري ژبه د افغانستان اکثریت خلک خبرې کوي او د دولت رسمي ژبې دي. په هغو سیمو کې چې اکثریت خلک يې له ازبکي، ترکمني، پشه يي، نورستاني، بلوچي ګوجري او یا پامیري ژبو څخه په یوه ژبه خبرې کوي، هلته پر پښتو او درې سربېره سیمه ییزه ژبه د درېمې رسمي ژبې په توګه دي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي پر ډلو ووېشل شي. هره ډله دې پر لاندې یوه موضوع پخپلو کې بحث وکړي. یو تن دې د خپلې ډلې په استازیتوب، موضوع په ټولګي کې شرحه کړي.

• د افغانستان خلک په کومو ژبو خبرې کوي. کومې ژبې د کوم دلیل له مخې رسمي دي؟

• اندو اروپایي ژبې پر څو برخو وېشل شوې دي؟د هر ګروپ مشهورې ژبې له سیمو سره واضح کړئ.

• در ویدا، ترکي او مغولي ژبو په باره کې معلومات ورکړئ

• بلوڅان، ازبېکان ترکمنان د افغانستان په کومه سیمه کې ژوند کوي؟



## پوښتنې:

۱. د افغانستان هندوان په (            )، (            ) او (            ) ژبو خبرې کوي.

۲. پشه يي ژبه د هېواد په کومو سيمو کې رواج لري؟

۳. اوس کومې ژبې له منځه تللي دي او ويونکي نه لري؟

۴. پښتو او دري ولې رسمي ژبې دي؟

۵. کومې ژبې په کوم دليل د درېمو رسمي ژبو حيثيت لري؟



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د افغانستان مهمې ژبې په يوه جدول کې په ترتيب وليکئ.

## ۱,۴– د مواصلاتو اهمیت:



په پورتني انځورکې کومه لویه لار وینئ؟

مواصلاتي لارې د یوې ټولنې او هېواد د اقتصادي، ټولنیز، سیاسي، فرهنګي او اداري پرمختګ بنسټ ګڼل کېږي. ټولې اقتصادي اړتیاوې (کرنیزې، صنعتي او تجارتي)، ټولنیزه، فرهنګي او سیاسي وده د مواصلاتي کرښو له ترقۍ او پرمختګ پرته امکان نه لري.

د یوې هوسا ټولنې اقتصادي او صنعتي پرمختیا د مواصلاتي کرښو او نقلیه وسیلو په پرمختګ او ترقۍ پورې اړه لري.

مخ پر ودې هېوادونه چې د اقتصادي او صنعتي پرمختګ لومړني پړاوونه وهي، تر ټولو لومړی باید مواصلاتي او ټرانسپورتي شرایط برابر کړي، چې تولیدي او تجارتي وسایل او کسب او کار وده وکړي. افغانستان د مخ پر ودې هېوادونو په ډله کې په وچې پورې تړلی او غریب هېواد دی. سیندونه یې هم د زیات ځوړ او سېلابي رژیم په درلودلو د بېړیو د چلولو لپاره برابر نه دي. نو د ځمکنیو مواصلاتي او هوایي سکټورونو وده د هېواد بنسټیزه اړتیا ده. له منظمې مواصلاتي شبکې پرته هر اړخیزه اقتصادي او ټولنیزه وده ممکنه نه ده. مواصلاتي لارې ښارونه او سیمې سره نښلوي. اومه او د انرژۍ تولیدوونکي مواد صنعتي مرکزونو او صنعتي او کرنیز محصولات بازارونو او استهلاکي مرکزونو ته لېږدوي.

په دې برخه کې پانګه اچونه د یوه هېواد د اقتصاد بنسټ جوړوي، چې په ټول هېواد کې د اقتصادي، سیاسي، فرهنګي او اقتصادي پلان جوړونې د ودې او پراختیا سبب کېږي.

د مواصلاتو د اقتصادي اهمیت په هکله لنډ ویلی شو چې:

- له منظمو ټرانسپورتي لارو څخه د ګټې اخېستنې په سبب بازار کې د کالیو بیه کمېږي.

- د سون د موادو په لګښت کمېږي او د سوداګرۍ مالونه د وخت له ضایع کېدلو پرته بازارنو ته لېږدول کېږي.

- بېلابېل قومونه د یو او بل له دود او دستور څخه خبرېږي. د هېواد ملي یووالی تأمینېږي، چې ورسره په ستونزو اخته سیمو ته په چټکۍ مرستې استول کېږي.

- د ټرانسپورتي لارو په نشتوالي کې پر دې سربېره چې پورتنۍ موخې لاس ته نه راځي؛ بلکې د فرهنګ او ښوونې او روزنې د وروسته والي لامل هم کېږي.

زموږ په هېواد کې په تېرو وختونو کې د پورتنیو ستونزو په درک سره پخوانیو پنځه کلنو پلانونو کې ډېره پرمختیایي بودجه، د موټرو د سړکونو د جوړولو لپاره بېله شوې وه. له درې لسیزو څخه په زیاته اوږده تېل شوې داخلي جګړه کې ټولې مواصلاتي شبکې ویجاړې شوې او د هغو بیا جوړولو

ته اړتیا پېښه شوه. له همدې امله، د موقت حکومت له تشکیل څخه وروسته د توکیو – جاپان په کنفرانس کې د هېواد د لویو لارو جوړولو او پراختیا ته د اقتصادي زیربنا په توګه د لومړیتوب حق ورکړل شو. اوس د حلقوي لویې لارې ۸۰ سلنه جوړه شوې او له بندرونو سره نښلول شوې ده. په همدې ډول، یوله بل سره د ولایتونو او له مرکز سره د ولسوالیو نښلول دوام لري.

له بلې خوا، په پام کې دي چې ټرانزیټي کرښې د شمال او لویدیځ ګاونډیانو سره فعالې شي او زموږ د هېواد د سوداګرۍ اړیکې به په منطقه کې پراخې شي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو کې تنظیمېږي. یوه ډله دې د مواصلاتو اهمیت د هېواد د اقتصادي زیربنا په توګه او دوهمه ډله د هېواد په اقتصادي او ټولنیزې ودې کې د مواصلاتو برخه باندې بحث وکړي. د ډلې یو غړی د زده کوونکو د فعالیت پایلې، ټولګیوالو ته وړاندې کوي. په پای کې ښوونکی د ډلې د فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو په ورزیاتولو را ټولوي.



## پوښتنې:

لنډه ځواب ورکړئ:

۱ - زموږ په هېواد کې ځمکني او هوايي ټرانسپورټ د مواصلات له نورو برخوڅخه ولې ښه وده کړې ده؟

۲ - په تېرو پنځه کلنو پلانونو کې زيات پام ولې د مواصلاتو ودې ته شوی و؟

۳ - د توکيو - جاپان د همکاريو په کنفرانس کې زيات پام د هېواد د لويولارو بيا جوړولو ته واړول شوی و.



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د هېواد د اقتصادي ودې له مخې د ځمکنيو مواصلاتو اهميت په څو کرښوکې وليکئ او د جغرافيې د مضمون په راتلونکي ساعت کې يې په ټولګي کې و لولئ .

# ۲,۴ـ ځمکنی حمل او نقل




پوهیږئ چې موټر کله زموږ هېواد ته وارد شو؟

د حمل و نقل د یو منظم مواصلاتي سیستم شتون (صنایعو په ګډون) د ټولنیز او اقتصادي پرمختیا بنسټ جوړوي او په هېواد کې د ټولنیز، اقتصادي یووالي د رامنځته کېدو سبب کېږي او د خدماتي موادو او اطلاعاتو د لېږد لپاره اسانتیاوې برابروي. په ملي سویه سوادګري پرمختګ کوي او له هغې سره یوځای د پرسونل استخدام او عواید هم زیاتېږي. د ژوند کچه هم لوړېږي. د دې ډول زیربناوو شتون په افغانستان کې، د ځمکې جغرافیایي جوړښت ته په پام سره، چې په ځانګړو او جلا سیمو وېشل کېږي، فوق العاده ارزښت لري. په تېره بیا د صنایعو پراختیا، چې له هغې پرته صنعتي مؤسسو ته اومه مواد او انرژي تولیدوونکي مواد او د هغو تولیدات استهلاکي سیمو ته انتقالیدی نه شي.

د منځنۍ آسیا په جنوب کې د افغانستان د جغرافیایي موقعیت ته په پام سره د تاریخ له ډېرې پخوا دورې څخه د اوږدې مودې لپاره د ختیځ او لویدیځ او د شمال او سویل تر منځ د سوداګرۍ اړیکو په تامین کې ډېر اهمیت لري. د دې تجارتي او فرهنګي اړیکو دوام د هېواد د ژوندانه د کچې په لوړولو کې د اقتصاد او فرهنګ له پلوه ډېر مهم رول لوبوي. له میلاد څخه مخکې په څلورمه پېړۍ کې د یوځې یرغل په پای کې د یونان او هند ترمنځ سوداګریزې اړیکې د افغانستان له لارې تأمین شوې وې. په لومړي میلادي کال کې د یونان د باختري پاچاهانو په وخت کې افغانستان د سوداګریزو اړیکو په تأمین

کې لوړ مقام درلوده؛ بلخ د هغې لارې د نښلیدو ځای ګڼل کېده.

په همدې ډول، د وریښمو او درملولاره (د کوشانیانو د امپراطورۍ په دوره کې) له دې هېواد څخه تېرېده. له همدې امله، د بلخ ښار د لویدیځ ( اروپایي) او ختیځ ( دچینایي او هندي) کالیو د تبادلې مرکز و.

د امیر عبدالرحمن خان د حکومت په وخت کې د نوو کاروان سرایونو ابادولو او په هېواد کې دننه د سوداګرۍ د محصول لغوه کېدلو د سوداګرۍ او اقتصاد لپاره زمینه برابره کړه. انګلیسانو له کراچۍ څخه ترکوټې او چمن پورې د اوسپنې کرښه و غځوله. خو د هېواد خارجي تجارت ته پام و نه شو.

تر ۱۹۳۰ م کال پورې، چې د ۱۳۰۸ لمریز کال سره سمون لري، ټول مسافرتونه پلي وو او وړل او راوړل د حیواناتو په مرسته ترسره کېدل. له هغې څخه وروسته په حمل و نقل کې له عصري وسایلو څخه ګټې اخېستنې چټکه وده وکړه.

په ۱۹۰۹م کال کې د امیرحبیب اله خان په دوره کې د لومړي ځل لپاره موټرونه د دملر له کمپنۍ څخه په ممبیي (بمبیي) کې وپېرېدل شول او په کابل کې په کار واچول شول.(۵۷) تنه کارګران هم بمبیي ته واستول شول چې د موټرو تخنیکي کارونه زده کړي. د موټرو شرکت د در باریانو له خوا جوړ شو. د یادونې وړ ده چې بایسکل مخکې افغانستان ته وارد شوی و.

د کاروانونو د تګ او راتګ لارې ترمیم شوې. د موټرو لپاره نوي سړکونه د کابل – جلال آباد، جلال آباد- لغمان ، کابل ـ جبل السراج، کابل – لوګر او کابل – غزني ترمنځ جوړ شول. د ټول هېواد په ښارونو کې کاروان سرایونه د سراجیه رباطونو په نوم په خلکو ودان شول. د دوه رباطونو تر منځ واټن شپږ کروه (تقریباً ۱۸ کیلومتره) و. پر دې سر بېره، د سیندو له پاسه عصري پلونه د مو ټرو د تګ او راتګ لپاره جوړ شول.

په امانیه دوره کې او له هغې څخه وروسته ځمکنیو مواصلاتو ته زیات پام وشو. د سړکونو جوړول او د مواصلاتي کرښو پر مختیایو لازمي امر وګڼل شو.څرنګه چې افغانستان په وچې پورې تړلی هېواد دی او سمندر ته لاره نه لري. نو په هېواد کې د ننیو او بهرنیو اړیکو د تامین لپاره له ځمکني او په دوهم پړاو کې له هوایي ټرانسپورټ څخه اغېزناکه طریقه نه شته.

د ځمکنیو ټرانسپورټي لارو د جوړولو او پراختیا په وړاندې زیاتې ستونزې دي چې ځینې یې په

گوته کوو.

- د هېواد طبيعي جوړښت او غرنۍ بڼه.
- د غرنيو او دښتي سيمو بېل اقليمونه.
- د عصري وسايلو، فني پرسونل او پوره پانګې نشتوالی.

تاسې پو هېږئ زموږ د هېواد $\frac{1}{3}$ برخه غرنۍ ده. دغه غرونه له شمال ختيځ څخه د جنوب لويديځ په لوري د يوه طبيعي دېوال په توګه پراته دي او هېواد يې په دوه شمالي او جنوبي برخو وېشلی د ی. زياتره کوتلونه يې له ۳۰۰۰ مترو څخه زيات لوړوالی لري او د کال په زياته موده کې په واورو پټ وي او د تګ او راتګ په وړاندې خنډګرځي. زياتې درې يې له شمال څخه جنوب ته، چې سور يې لږ دی، د سيندونو په اوږدو کې پرتې دي چې د تګ او راتګ په وړاندې ستونزې جوړوي. په همدې ډول، غرنۍ سيمې او پراخه شګلنې دښتې هم د ځمکنۍ ټرانسپورټ د پراختيا په وړاندې ستونزې جوړوي، چې زياتې پانګې، عصري وسايلو او فني پرسونل ته اړتيا لري.

د هېواد د سيندونو مسيرونو، له دې سره سره چې د کارواني لويو لارو په غځولو کې اغېزناکه مرسته کړې ده. خو د ځمکنۍ ټرانسپورټ په غځولو او پر مختګ کې يې ستونزې را منځته کړې دي. د دې تر څنګ چې ځينو ځايونو کې درې دومره تنګې دي، چې يوازې د سيند د بهيدو لاره يې جوړه کړې ده، لکه: ماهيپر، درونټه، سالنګ او داسې نور، چې په ځينو ځايونو کې د غرونو د توږلو او د تونل د کيندلو اړتيا پېښېږي. سيندونه هم کږېږي او تاو را تاوېږي او سړکونه بايد څو ځله د سيند له پاسه تېرشي. پر دې سر بېره بېشماره پلونه او استنادي ديوالونه بايد د واورې د ښوييدو په وړاندې جوړ شي. له همدې امله د دې ستونزې د حل لپاره زيات وخت، پوره پانګې او فني پرسونل ته اړتيا ده.

له دې ټولو ستونزو سره سره ځمکنی ټرانسپورټ له ټولو نورو ټرانسپورټونو څخه اړين او ګټور دی.

د اوسپنې د کرښو د پرمختګ په وړاندې پاسني ياد شوي خنډونه د پام وړ دي، چې د هغو له مخې زموږ په هېواد کې د اوسپنې کرښې نه وې جوړې شوې. خو په پام کې ده چې د ګاونډيو هېوادونو (ايکو او سارک) په مرسته دغه ستونزه په را تلونکي کې حل شي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو کې تنظیم شي. هره ډله دې په هېواد کې د اقتصادي او ټولنیزې زیر بنا په توګه د مواصلاتو په رول په خپلو کې بحث وکړي او د خپلو بحثونو پایلې دې یو زده کوونکی ټولګیوالو ته بیان کړي او ښاغلی ښوونکی دی د بحث پایله، له خپلو معلوماتو سره یو ځای را ټوله کړي.



### پوښتنې:

لنډه جواب وواياست:

۱-د خپل هېواد د ځمکنی ټرانسپورټ د پرمختګ په وړاندې سترې ستونزې په لنډه توضیح کړئ.
۲-په هېواد کې ولې ځمکني ټرانسپورټ له نورو ټرانسپورټي ډولونو څخه زیاته پراختیا موندلې ده؟
۳-د هېواد په اقتصادي پر مختګ کې د ځمکني ټرانسپورټ اهمیت توضیح کړئ.

لاندنۍ نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱- موټر لومړ ی ځل لپاره د..................حکومت په دوره کې هېواد ته وارد شو؟
۲-د لومړي ځل لپاره د افغانستان له لارې د هند او یونان تر منځ د ....................
د حکومت په وخت کې تأمین شوی وی.

سم ځوابونه د (س) او غلط ځوابونه د (ن) په توري په نښه کړي:

۱- ایا زموږ د هېواد جغرافیایي موقعیت د ختیځ او لویدیځ تر منځ د تجارتي اړیکو په تأمین کې ډېر اهمیت لري؟
۲-ایا د موټر لپاره د سړکونوجوړول د امیر عبدالرحمن خان د حکومت په وخت کې پیل شول؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د هېواد د اقتصادي، ټولنیزې او فرهنګي پراختیا په هکله د ځمکني ټرانسپورټ اهمیت په څو کرښو کې ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په را تلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته ولولئ.

## الف: څو ډوله ټرانسپورټي وسایل پېژنئ؟



**پورتنیو انځورونو ته په غور وگورئ؛ دغه وسایل د ټرانسپورټ په کوم ډول پورې اړه لري؟**

د ځمکني ټرانسپورټ اصطلاح هغو وسیلو ته ویل کېږي چې د ځمکې د و چې برخې له پاسه حرکت کوي، لکه د بار وړلو حیوانات، بایسیکل، موټر سایکل، موټر (لارۍ، بسونه، میني بسونه، گرندي موټرونه) او اورگاډي له ټولو ډولونو سره.

د دغو وسیلو په اختراع سره د سیمو او هېوادونو تر منځ واټن لنډېږي. هغه واټنونه چې کاروانونو په اونیو کې وهل، اوس د دې وسیلو په مرسته څو ساعتوتو ته را لنډ شوي دي. همدارنگه، له دې وسیلو څخه په گټې اخېستنې درانه تجارتي مالونه، چې پخوایې د لېږدېدو توان نه وو، اوس په اسانۍ سره لېږدول کېږي.

بایسکل د ټرانسپورټ ډېره گټوره وسیله ده. په میلیونونو انسانان ورڅخه گټه اخلي. آن تر دې چې په ځینو هېوادونو کې یې د بایسکل د چلولو لپاره ځانگړي واټونه او جادې هم جوړې کړې دي.

د لومړي ځل لپاره بایسکل یوانگلیسي پوه کنت دوسواک په ۱۷۹۰ م کال کې اختراع کړ، چې دوه څرخونه او یو چوکاټ یې درلود. اوس په نړۍ کې په سلگونو ډوله بایسکلونه جوړېږي چې نه یوازې ټرانسپورټي وسیله ده، بلکه: د سپورټ لپاره هم گټور دي.د سون مواد نه لگوي او د استوگنې چاپیریال نه ککړوي. د چین د خلکو د ځمکني ټرانسپورټ زیاته برخه په تېره بیا په ښارونو کې بایسکل جوړوي.

زموږ هېواد ته بایسکل له موټر څخه مخکې د امیر حبیب الله خان د حکومت په وخت کې وارد شو. اوس په زرگونو تنه خلك ورڅخه گټه اخلي.

بله وسیله چې له موټر سره ورته ده، خو د کوچني ماشین په مرسته چې لږ تېل مصرفوي فعالیت کوي، د موټر سایکل په نوم یادېږي. څرنګه چې د تېلو لګښت یې لږ دی نو زیاته ګټه ورڅخه اخېستل کېږي. زموږ په هېواد کې یې استعمال له بایسیکل څخه وروسته ډېر دی .

د ۱۸ م. پېړۍ په دوهمه نیمایي کې د بخار ماشین په کشف سره، سمنګټن د انتقالولو یوه وسیله جوړه کړه چې د بخار په واسطه یې حرکت کاوه چې دغه لومړنی جوړ شوی موټر ګڼل کېږي.

په انګلستان کې زیاتې انتقالاتي وسیلې جوړې شوې، خو د ډېرو سکرو د لګولو له امله یې زیات لوګی کاوه او د تخنیکي نیمګړتیاوو له مخې یې زیات ټکرونه کول.

د ۱۹ م پېړۍ په دوهمه نیمایي کې داسې موټر اختر اع شو چې په نفتو یې حرکت کاوه. زموږ په هېواد کې کله چې مستر دین د برتانوي هند د خارجه چارو وزارت سکرتر په ۱۹۰۴ زیږدیز کال په ډسمبر کې کابل ته سفر کاوه، د نورو سوغاتونو تر څنګ یې یوه عراده موټر هم امیر حبیب الله خان ته ډالۍ کړ، چې ۷۰۰ سټرلنګ پونډه ارزښت یې درلوده. په هغه موټر کې د تېلو پر ځای لرګي سوځېدل او ماشین ته یې حرکت ورکاوه.

اوس زموږ هېواد ته بېلابېل ډول موټرونه وارد شوي دي، لکه: (باروړونکي موټرونه، د طبیعي ګاز او تېلو ټانکرونه)، کوچني او لوی بسونه او ګړندي موټرونه چې د نړۍ د ډېرو عصري کمپنیو څخه پېرودل کېږي.

د اوسپنې کرښه د مالونو د وړلو او راوړلو ډېره پخوانۍ وسیله ده چې د بخار د ماشین په واسطه په کار اچول شوې او د اوسپنې کرښې ورته غځېږي او نن سبا د ځمکنې حمل و نقل ډېره ستره وسیله ده.

په ۱۳۰۵ لمریز کال کې د شاه امان الله خان په دوره کې، کله چې د دارالامان عصري ښار جوړول پیل شول، د خلکو او تعمیراتي مالونو د انتقال لپاره یو کوچنی اورګاډی د اوسپنې کرښې سره هم هېواد ته وارد شو چې دا کرښه د شاه دو شمشیره له زیارت څخه د دارالامان تر ماڼۍ پورې غځېدلې وه.دغه اورګاډي د بخار یو انجن او څو ډبې درلودې او هره ورځ به یې خلک او کالي په دې کرښه انتقالول . تراوسه یې نښې د کابل په موزیم کې شته.دغې کرښې له ۸-۷ کیلومترو پورې اوږدوالی در لوده او تر ۱۳۰۷ لمریز کال پورې فعاله وه. د شاه امان اله خان له سقوط څخه وروسته، د هغه وخت حکومتونو د اوسپنې کرښې له جوړولو او غځولو سره مینه ښکاره نه کړه.

د یادونې وړ ده چې په هېواد کې له د ملي بس څخه پرته ټولې ټرانسپورټې تصدیګانې منحل اعلان شوې. دا تصدي د زرو څخه د زیاتو بسونو په درلودلو د کابل ښار په دننه او د هېواد په ولایتونو کې فعالیت کوي او په پام کې ده چې د برېښنا یي بسونو پروژه چې د کابل ښار په داخلي جګړو کې ړنګه شوې دوهم ځلي احیا کړي. برېښنایي بسونه پردې سربېره چې لږ لګښت لري، د ژوند چاپیریال هم نه ککړوي.

سربېره

## اضافي معلومات (د مطالعې لپاره):

ځمکنۍ ټرانسپورټ په ځانګړي ډول د وسایطو واردولو د یادونې وړ پر مختګ کړی دی. په ۱۳۸۵لمریز کال کې د ټولو ثبت شوو موټرو شمېر ۶۰۶۹۴۴ عرادو ته رسېده. دا شمېر په ۱۳۸۶لمریز کال کې ۸۷۳۷۰۱عرادو ته لوړ شو چې ۸/۴۳سلنه ډېروالی راښيي. شخصي او ټکسي موټر ډېر زیاتوالی ښکاره کوي او همدارنګه د لاریو شمېر ۱۱۷۴۶۰خخه ۱۳۵۴۴۶ او د بسونو شمېر له ۴۸۵۱۳ څخه ۵۸۰۴۹ عرادو ته لوړ شوي.

| ځمکنۍ ټرانسپورټ | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خصوصیات | د مقیاس واحد | ۱۳۸۴ لمریز کال کې | ۱۳۸۵ لمریز کال کې | ۱۳۸۶ لمریز کال کې |
| ټول موټرونه | عرادې | ۴۸۶۱۴۱ | ۶۰۶۹۴۴ | ۸۷۳۷۰۱ |
| دولتي سکټور | عرادې | ۲۸۵۱۰ | ۳۰۲۵۱ | ۳۳۳۰۶ |
| خصوصي سکټور | عرادې | ۴۵۷۶۳۱ | ۵۷۶۶۹۳ | ۸۴۰۳۹۲ |
| لارۍ | عرادې | ۱۰۰۸۸۳ | ۱۱۷۴۶۰ | ۱۳۵۴۴۶ |
| دولتي سکټور | عرادې | ۱۱۳۴۱ | ۱۱۹۰۸ | ۱۲۹۱۵ |
| دخصوصي سکټور | عرادې | ۸۹۵۴۲ | ۱۰۵۵۵۲ | ۱۲۲۵۳۱ |
| بسونه | عرادې | ۴۱۷۱۳ | ۴۸۵۱۳ | ۸۰۴۹ |
| دولتي بسونه | عرادې | ۳۳۶۸ | ۳۵۸۶ | ۴۲۱۳ |
| ګرځندي موټرونه | عرادې | ۲۶۲۷۰ | ۳۱۴۱۶۵ | ۵۱۷۶۰۱ |
| دولتي سکټور | عرادې | ۱۲۵۷۹ | ۱۳۲۳۳ | ۱۴۵۰۱ |
| موټر سیکلونه | عرادې | ۶۴۸۱۷ | ۱۰۸۲۸۲ | ۱۲۷۹۵۹ |
| دولتي سکټور | عرادې | ۱۲۲۲ | ۱۵۲۱ | ۱۶۷۷ |
| په هېواد کې د بهرنیو اتباعو وسایط | عرادې | ۱۲۶۶۸ | ۱۳۲۹۶ | ۲۵۷۹۴ |

۱۳۸۶ لمریز کال د مرکزي احصایې د ادارې د کلنۍ احصایې ۲۰۵ مخ.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي او ټولې ډلې دې په ټولنه کې د ځمکني ټرانسپورټ په اهمیت بحث وکړي او همدارنګه د ژوندانه په چاپېریال باندې د هغه بې ساري زیاتوالي اغېزې دې روښانه کړي او د ډلې یو غړی دې د بحثو نو پایله ټولګیوالو ته بیان کړي.



## پوښتنې:

لنډه یې ځواب کړئ:

۱-د ځمکني ټرانسپورټ د وسایلود ډولونو نومونه واخلئ.

۲-د ټرانسپورټي وسیلو اختراع کومې اسانتیاوې رامنځته کړي دي؟

لاندنۍ نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

الف: د بایسکل مخترع ..............دی.

ب: زموږ هېواد ته موټر د برتانوي هند د بهرنیو چارو د سکرټر ........................... سفر په وخت کې کابل ته راوړل شو.

سم ځواب په نښه کړئ:

الف: بایسکل د انتقال ګټوره وسیله ده چې د ژوندانه چاپېریال نه ککړوي.

ب: پخوانۍ ټولې ټرانسپورټي تصدۍ منحل شوي دي.

ج: د اوسپنې کرښه د غازي امان اله خان د پاچاهۍ په دوره کې افغانستان ته وارد شوې ده.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زموږ په هېواد کې د ځمکني ټرانسپورټ (د اوسپنې کرښې) د سترې وسیلې د اهمیت په هکله تبصره ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکې ساعت کې یې ټولګیوالوته بیان کړئ.

## ب: د افغانستان د لویو لارو په هکله څه پوهېږئ؟




لویې لارې په یوه هېواد کې، د بدن لپاره د وینې د شریانونو معنا لري.هغه هېوادونه چې په هغو کې لویې لارې لږې پر مختللې دي، په واقعیت کې په هغه هېواد کې ټولنیزه او اقتصادي وده په ټپه دریدلې او د اقتصادي څرخ بېلې برخې، لکه: صنعتي تولیدات،کرنیز محصولات، عرضه او تقاضا، په بازار کې پېرودل او پلورل، مسافرتونه اوګرځېدنه له یوه ځایه څخه بل ځای ته تلل او راتلل په بشپړ ډول له ستونزوسره مخامخ کېږي. هېواد او اړونده ټولنه په بشپړ ډول په فرهنګي او اقتصادي انزوا کې واقع کېږي.

ددې لپاره چې زموږ هېواد د اقتصاد او ټولنیز فعالیت له امله ارزښت ناک خوځښت ولري، باید په هېواد کې دننه د ټولو ولایتونو، ولسوالیو او کلیو ترمنځ او له هېواد څخه د باندې له ګاونډیو هېوادونو سره سیاسي او اقتصادي همېشني تماسونه ټینګ کړو، نو اړین بریښي چې مواصلاتي برخې ته یې ځانګړی پام وشي.

د غازي امان اله خان او محمد ظاهر خان د پاچاهۍ په دوره کې، په تېره بیا د محمد داوود خان د صدارت په دوره کې ډېره هڅه وشوه چې هېواد له اقتصادي او ټولنیزې انزوا څخه وژغوري. په

ټولو پنځه کلنو پلانونو کې د لویو لارو جوړولو ته، د اقتصادي زیر بنا په توګه،ځانګړی پام وشو. په پنځه کلن لومړي پلان (۱۳۳۰ - ۱۳۳۵ لمریز کال)، دوهم پلان (۱۳۳۵-۱۳۴۰) او دریم پلان (۱۳۴۱-۱۳۴۵) کالوکې د پرمختیایي بودجې ۵۰ سلنه په لویو لارو ولګېده او له ۲۵۰۰ کیلومترو څخه زیات قیر شوي او کانکریټي سړکونه جوړ شول.

خو په داخلي جګړو کې دغه ټولې جادې تر یوې اندازې پورې ویجاړې شوې چې ترمیم غواړي.

د پخوانیو لویو لارو پراختیا او د نوو لویو لارو جوړول، د دولت اساسي اړتیاوې دي.

څرنګه چې خصوصي سکټور په دې برخه کې له پانګې اچونې سره مینه نه لري. د لویو لارو ترمیم او جوړول د دولت په غاړه دي.

لوې لارېې پر دوه برخو وېشل کېږي:

۱- حلقوي لویې لارې چې په هغو باندې ترافیک له یوې نقطې پیل او له یو دوراني حرکت څخه د نامنظمې دایرې یا بیضوي ته ورته دایرې په بڼه، د پیل له نقطې سره نښلي. لکه د کابل – مزار شریف –شبرغان – میمنې – بادغیس – هرات –کندهار – غزني ا و کابل حلقوي سړک.

۲-بېلې او پرې شوې لارې چې له حلقوي لویو لارو څخه جلا شوي دي لکه د کابل –خوست او داسې نورې لارې.

د هېواد مهمې لویې لارې دا دي:

## د هېواد شمالي لویه لاره:

د مرکزي او شمالي و لایتونو د سوداګرۍ او مواصلاتو په بر خه کې، دغه لویه لاره ستره برخه لري.

د دې پروژې ګټې دي:

۱- د دې لویې لارې په جوړېدو سره مرکزي ولایتونه مستقیماً له شمالي ولایتونو سره ونښلول شول. دغه لویه لاره د ښکاري درې له لارې څخه چې ۴۰ کاله یې د هېواد شمالي سیمې د مرکزي او جنوبي سیمو سره نښلولې، ۲۰۰ کیلومتره لنډه ده. په پای کې ټرانسپورټي لګښتونه او د موټرو استهلاک کمېږي او په لږ وخت کې حاصلات سوداګریزو مرکزونوته وړل کېږي.

۲-د هېواد د شمالي سیمو تو لیدي محصولات په جنوب کې لګښتي مرکزونو ته او صادراتي مالونه د هېواد شمالي بندرونو ته په ډېر لږ وخت کې وړل کېږي.

۳-ځینې فابریکې لکه: د بغلان د بورې کارخانه، د غوري او ګلبهار د سمنټو کارخانې، د پلخمري او جبل السراج د نساجۍ کارخانې او داسې نورې د دې لویې لارې په اړدو کې دي. د هغو تولیدات

د وخت له ضایع کېدو پرته د خرڅلاو بازارونو ته  او همدارنګه اومه مواد او د اړتیا وړ نور مواد یې له همدې لارې څخه انتقالېږي.

## د کابل – تورخم لویه لار:

دغه لویه لار له نورو ټرانزیټي لویو لارو څخه ځانګړې اهمیت لري. دغه لویه لار د تورخم له لارې له پېښور سره نښتې ده. له هغې څخه وروسته د اوسپنې د کرښې او قیر شوې لویې لارې په واسطه د کراچۍ له بندر سره او د هغې له لارې د هند د سمندر اوبو د نړیوالې لارې سره نښلي. له هغې څخه په ګټې اخیستنې زموږ د هېواد د سوداګرۍ ټول مالونه هند او د آسیا، اروپا او امریکا نورو هېوادونو ته صادرېږي. د نړۍ له هېوادونو څخه وارداتي مالونه د ټرانزیټ له حق څخه په ګټې اخیستنې سره، زموږ هېواد ته واردېږي.

دغه لویه لار د فرعي قیرشوو لویو لارو په واسطه له کنړ، لغمان او نورستان ولایتونو او د ننګرهار له ولسوالیو سره نښتې ده.

د دې لویې لارې په اوږدو کې د برېښنا بندونه او د ننګرهار د کانال پروژه جوړه شوې ده، چې د هغې په بشپړېدو کې یې ستر رول لوبولی دی. په همدې ډول، د نوموړو ولایتونو تولیدي او کرنیز محصولات کابل او نورو استهلاکي مرکزونو ته انتقالېږي چې په پای کې د نوموړو ولایتونو د اقتصادي پرمختګ سبب کېږي.

## کابل – کندهار لویه لار:

د ټرانزیټي فعالیت له مخې دغه لویه لار د  هېواد د لویو لارو په ډله کې لومړی مقام لري. ځکه چې د کابل – کندهار لویه لار  د کندهار – سپین بولدك له لارې د چمن د اوسپنې کرښې په واسطه د کراچۍ او ګوادر (د عرب د سمندرګي پر غاړه پروت دی) له بندرونو سره نښلوي. همدارنګه، د کندهار – هرات د لویې لارې په واسطه د تورغونډۍ د بندر په واسطه د ترکمنستان له جمهوریت سره، په هرات کې د اسلام کلا د بندر، په فراه کې د ابو نصر فراهي بندر او د نیمروز د ولایت د لارام – زرنج لویې لارې په واسطه له ایران سره او د هغې لارې د اوسپنې د کرښې په واسطه د ایران د چابهار له بندر سره د عرب د سمندرګي نړیوالو اوبو ته لاره پیداکوي. د دې بندر له لارې نه یوازې افغاني مالونه، بلکې د مرکز ي آسیا د هېوادونو مالونه هم وارد او صادرېږي.

د کابل –کندهار لویه لار څو ولایتونه، چې تاریخي او تجارتي ځایونه لري، یو له بل سره نښلوي.

### د کندهار – هرات – تورغندۍ (پخوانۍ قره تپه) لویه لار:

دغه لویه لاره د ډېره عصري له کانکریټي جوړه شوې وه. خو اوس د بیا رغونې په پایله کې قیر شوې ده. زموږ هېواد ترکمنستان سره نښلوي. په همدې ډول، د لویدېځو ولایتونو د مرکزونو د نښلولو له مخې اهمیت لري، چې کندهار او هرات په مستقیم ډول او فراه، نیمروز او هلمند په غیر مستقم ډول سره نښلوي.

### هرات – اسلام قلعه لویه لار:

د دې لویې لارې اوږدوالی ۱۲۴ کیلومتره دی او د هرات ښار د اسلام قلعه له بندر سره، چې له ایران سره د افغانستان په سرحد کې دی، نښلوي. دغه لویه لار له ایران، ترکیې او نورو اروپایي هېوادونو سره په سوداګرۍ کې زیات اهمیت لري.

### د پلخمري – شبرغان – فاریاب لویه لار:

دغه لویه لار د سوداګرۍ او اقتصاد له پلوه ځانګړې اهمیت لري او د هېواد د حلقوي لویې لارې برخه ده چې د هېواد شمالي ولایتونه لکه: بغلان، سمنګان، بلخ، جوزجان او فاریاب یوله بل سره نښلوي او د بادغیس د ولایت له لارې د هرات له ولایت سره نښلي. له هرات سره د هغې په نښلولو دغه حلقوي لویه لار بشپړیږي. له هغې څخه د جلاشوو لویو لارو په واسطه د حیرتان، کلفت او د اندخوی د آقینې له بندرونو سره هم نښلي.

### د کابل- خوست لویه لار:

له ډېرو کلونو راهیسې د دوهمې درجې لویې لارې په نامه یادیده. خو کله چې د خوست د غلام خان له بندر سره وصل شوه او له هغې لارې د کرمې ایجنسۍ سره ونښته، ځانګړې اقتصادي او سوداګریز اهمیت یې پیداکړ. د هېواد جنوبي ولایتونه، لکه: لوګر، پکتیا او خوست یې له کابل سره ونښلول.

### د کندز – بدخشان لویه لاره:

د هېواد مهم حاصل خیزه، کرنیز او صنعتي ولایتونه لکه: کندز، تخار او بدخشان یو له بل سره نښلوي. همدارنګه، د هېواد د شمالي لویې لارې په واسطه له حلقوي لویې لارې سره نښتي. په همدې ډول، د کندز شېرخان بندر له لارې له تاجکستان سره نښلي.

د هېواد د لویو لارو جوړول پردې سربېره چې د هېواد د بېلابېلو سیمو تر منځ اقتصادي او تجارتې اړیکې، جوړوي، بلکې د هغو له لارې د جنوبي او مرکزي آسیا د هېوادونو تر منځ دوستانه اړیکو

کې هم مهمه برخه لري. چې د همدې موقعیت له مخې د افغانستان تاریخي اهمیت یوځل بیا د جنوب ختیځې او مرکزي آسیا او مدیترانې د حوزې په نښلولو کې څرګند وي.

## د مطالعې لپاره اضافي معلومات

| شماره | لویه لار | اوږدوالي په کیلومتر |
|---|---|---|
| ۱ | کابل – کندز | ۳۳۷ |
| ۲ | کندز – شیر خان بندر | ۶۳ |
| ۳ | پلخمري ـ شبرغان | ۳۶۰ |
| ۴ | شبرغان – میمنه | ۱۷۹ |
| ۵ | کابل – تورخم | ۲۳۲ |
| ۶ | کابل – جلال آباد | ۱۴۸ |
| ۷ | جلال آباد – اسعد اباد | ۹۰ |
| ۸ | سرخکان – مهتر لام | ۱۸ |
| ۹ | کابل – کندهار | ۴۸۳ |
| ۱۰ | کندهار –سپین بولدك | ۱۰۱ |
| ۱۱ | کندهار – هرات – تور غنډۍ | ۶۷۹ |
| ۱۲ | هرات – اسلام کلا | ۱۲۴ |
| ۱۳ | کندهار – هرات | ۵۶۷ |
| ۱۴ | کابل –ګردیز | ۱۲۲ |
| ۱۵ | ګردیز – خوست | ۱۱۴ |
| ۱۶ | کندز – تخار | ۷۰ |
| ۱۷ | تخار – بدخشان | ۱۶۹ |



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د هېواد په مواصلاتي نقشه کې دیوې لویې لارې تګلورى وټاکي، چې کوم ولایتونه سره نښلوي، لکه: د کابل- کندهار، کندهار- هرات، پلخمري - هرات، کابل- تورخم او داسې نور. هره ډله دې د فعالیت پایله خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي. ښاغلى ښوونکى دې د ډلې د فعالیت پایلې له خپلو معلوماتو سره یو ځاى را ټولې کړي.



### پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱-د منځمهالې اداري له جوړېدو وروسته د لویو لارو پراختیا ته ولې ځانګړى پام وشو؟

۲- د هېواد په اقتصادي پرمختګ کې د لویو لارو اهمیت توضیح کړئ.

۳- د هېواد کومې ټرانزیټي لارې د عرب سمندرګي له نړیوالو اوبو سره نښتې دي؟

لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۴- د هېواد لویې لارې په دوو سترو برخو............... او............ وېشل شوې دي.

۵- د شمال حلقوي لویه لار د............، ........ او .........بندرونو له لارې له تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان سره نښتې ده.

۶- زموږ د هېواد د...........، .............او.......... لویو لارو له په وسیله له ایران له هېواد سره نښتی دی.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د افغانستان نقشه رسم کړئ او په هغې کې د هېواد حلقوي لویه لار وکاږئ او د جغرافیې د مضمون په را تلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وښئ.

# ۳,۴ د هوايي ټرانسپورټ په هکله څه پوهېږئ؟




هوايي ټرانسپورټ د هېواد دلېرې پرتو سيمو او نړۍ په نږدې کولو کې ارزښتناکه رول لوبوي. خو دغه ټرانسپورټ د نورو ترانسپورټونو په پرتله د انرژيکي موادو د ډېر لګښت له کبله په لوړه بيه تمامېږي. خو سياسي، تجارتي او نظامي اړيکي په چټکۍ ټينګوي. له همدې امله، هر هېواد د خپل مالي او اقتصادي شرايطو له مخې د دې سکټور ودې ته ډېر پام نه کوي.

لکه چې پوهېږو افغانستان غرنی هېواد دی. هندوکش، بابا غر او فيروزکوه د يوه طبيعي حايل په توګه هېواد په دوو شمالي اوجنوبي برخو وېشلی دی. پر دې سر بېره، زموږ هېواد په وچې پورې تړلی دی. د لويو لاروغځول د خلکو اړتيا ته ځواب نه شي ويلی. له همدې امله، د هوايي حمل و نقل اهميت زيات او د پام وړ دی. دغه هېواد له يوې خوا سمندر ته لار نه لري او له بله پلوه د غرونو په واسطه په کوچنيو او بېلو جغرافيايي سيمو و يشل شوی دی، چې دغه ډول طبيعي شرايط ټولنيز او آن سياسي ستونزې لري. د همدې اصل له مخې، د اړتيا وړ زياتره مواد په مناسب وخت په هېواد کې دننه او بهر کې مصرف کوونکو ته په ټاکلي وخت نه رسېږي.

زموږ هېواد د هوا نوردۍ فعاليت او له الوتکو څخه د مسافرو او تجارتي مالونو په وړلو او راوړلو کې ډېر لرغونتوب نه لري . د هوا نوردۍ د فعاليت پيل په ۱۳۰۶ لمريز کال د غازي امان اله خان د پاچاهۍ په دورې پورې مربوط ګڼل کېږي چې د لومړي ځل لپاره يوې کوچنۍ روسي الوتکې په مياشت کې دوه ځله د کابل او ترمز ترمنځ الوتنې پيل کړې و.

په ۱۳۱۷ لمريز کال کې د جرمني د لوفت انزا د کمپنۍ يوه درې ماشينه الوتکه له برلين څخه هرات او کابل او له کابل څخه جاپان ته الوتله.

په هېواد کې د آريانا افغان هوايي شرکت لومړنی هوايي شرکت دی چې، د مسافرو او تجارتي مالونو د

حمل و نقل په منظور په **۱۳۱۷** لمریز کال کې جوړ او فعالیت پیل کړ. څرنګه چې پوره تأسیسات او امکانات یې نه درلودل، نو د هېواد اړتیاوو ته یې ځواب نه شوویلی. نویه **۱۳۳۵** لمریز کال کې د ملکي هوانوردۍ ریاست جوړ شو. د هغې په جوړېدو سره په افغانستان کې د هوانوردۍ د پراختیا او پر مختګ لپاره زمینه برابره شوه. د هوانوردۍ ریاست په کندهار، مزارشریف، هرات او جلال اباد کې د هوایي ډګرونو په جوړولو لاس پورې وکړ. بهرنۍهوایي نمایندګۍ هم د افغانستان له هوایي ډګرونو څخه ګټه اخلي. له هوایي ټرانسپورټ څخه د مسافرو او هغو مالونو اوکالیو د انتقال لپاره ګټه اخېستل کېږي چې حجم یې لږ او ارزښت یې زیات وي.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبوډلو ووېشل شي او هره ډله دې د هوایي ټرانسپورټ د پرمختګ پر اهمیت او اړتیا بحث وکړي او پایلې دې د ډلې یو غړی ټولګیوالوته وړاندې کړي.

## پوښتنې:

سمې جملې د (س) په توري او ناسمې جملې د (ن) په توري په نښه کړئ.

۱- هوایي ټرانسپورټ د نورو ټرانسپورټونو په پرتله ډېره انرژي لګوي.

۲- د ملکي هوانوردۍ ریاست په جوړېدو سره د هوانوردۍ د پراختیا لپاره وخت برابر شو.

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ.

۱- د هېواد د ملکي هوانوردۍ فعالیت د.......پاچاهۍ په دوره کې په ۱۳۰٦لمریز کال کې پېل شو.

۲- د هېواد لومړني داخلي شرکت د..........په نوم په ۱۳۳۳لمریز کال فعالیت پېل کړ.

لنډ ځواب ورکړئ.

۱-له هوایي ټرانسپورټ څخه د کومو مالونو د انتقال لپاره ګټه اخېستل کېږي؟

۲-د هوایي ټرانسپورټ د پراختیا لاملونه بیان کړئ؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د هوایي ټرانسپورټ د اړتیا او پراختیا په باره کې مقاله ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# الف ـ د هېواد هوايي شرکتونه او ډګرونه



د حامد کرزي د نړيوال هوايي ډګر يوه برخه

ملکي هوايي رياست په ۱۳۳۵لمريزکال کې جوړ شو. په هغه وخت کې يې د هوا پېژندنې او هوانوردۍ په نوم دوه سترې مؤسسې درلودلې چې د نړۍ د ملکي هوانوردۍ د مؤسسې غړيتوب يې هم درلود چې د هغو له مالي او معنوي مرستو څخه يې په ټولو برخوکې ګټه اخيستله.
د هوايي ډګرونو جوړول او څارل، د مخابرو دستګاوو او د هوانو ردۍ د وسيلو او ميټرولوژۍ Meteorology د سټېشونو نصبول، د ټولو تشبثاتو او د هوايي لېږد را لېږد د مؤسسو تنظيم او اداره، د ملکي هوانوردۍ اړوند د ټولو مقرراتو او اصولنامو اجراءکولو او په پای کې په نوموړو ځانګوکې د اړتيا وړ فني پرسونل روزنه، د دې رياست سترې دندې ګڼل کېدې.

## د کابل د نړيوال ډګر جوړول:

ددې ډګر د جوړولو کار په ۱۳۳۹لمريز کال کې پيل شو، او په ۱۳۴۱لمريز کال کې پای ته ورسيده چې د کورنيو او بهرنيو الوتکو د ګټې اخېستنې وړ وګرځيد. پر دې سربېره دغه ډګر يو عصري ټرمينل چې په ټولو وسايلو سمبال دی، لکه: مخابره، هواپېژندنې، هوايي ترافيک، د ګمرک ځانګې، تعليمي مرکز، تخنيکي ورکشاپونه او داسې نور هم لري. دغه ډګر په وروستيو کلونوکې نور هم پراخ شو. په ۱۳۸۸لمريز کال کې د جاپان د هېواد په مرسته ددې ډګر په لويدېځه برخه کې نوی ټرمينل، چې په نوو وسايلو او ملحقاتو سمبال دی، هم جوړ شو.

په نورو ولایتونو کې د هوايي ډګرونو د جوړولو پلان هم عملي شو. په لومړي پړاو کې د کندهار، هرات، کندز او جلال اباد د ډګرونو جوړېدل پیل شول.
د کندهار هوايي ډګر د کندهار د ښار جنوب ختیځ ته په ۸ کیلو مترۍ کې د سپین بولدک په لاره کې په یوه پراخه ساحه کې جوړ شوی. دغه هوايي ډګر د کابل د نړیوال هوايي ډګر په شان د هر ډول الوتکو د ګټې اخېستنې لپاره مناسب دی. دا ډګر په ابتدائي او محلي ډول په ۱۳۳۰ لمریز کال کې د ګټې اخېستنې ور شوی و.
د کندهار هوايي ډګر په ټولو عصري تأسیساتو، لکه: هو ټل، ټرمینل، مخابراتي وسایلو او داسې نورو سمبال دی.
لنډه ویلی شو چې په ۱۳۸۸ لمریز کال کې تقریباً ۳۷ هوايي ډګرونه وو. چې له هغې ډلې څخه د کابل، چې په ۲۰۱٤ م. کال کې د حامد کرزي په نامه ونومول شو، د کندهار (د احمد شاه بابا) د مزار شریف (د جلال الدین بلخي ) او هرات هوايي نړیوال ډګرونه لومړۍ درجه پر مختللي تأسیسات او د الوتکو د منډې قیر شوې لارې لري.
جلال آباد او کندز هوايي ډګرونه د لږ ظرفیت له کبله په دوهمه درجه کې دي. ټرمینل او د الوتکو د منډې قیر شوی لارې لري. نور ۱۴ هوايي ډګرونه درېمه درجه او ۷ نور څلورمه درجه کې راځي چې ټرمینل او د الوتکو د منډې خامې لارې لري. پر هغو سربېره، پنځمه درجه هوايي ډګرونه هم په هېواد کې شته.
د یادونې وړ ده چې کوم عواید د نړیوالو ډګرونو له مقررې سره سم د بهرنیو الوتکو له الوتنو څخه په ۱۳۸۸ لمریز کال کې د دولت خزانې ته تحویل شوي دي، دا دي:
۱ - د هرې بهرنۍ الوتکې له ټول وزن څخه، د یو ټن( ۵۰۰) افغانۍ د دولت عوایدو ته تحویل شوي دي.
۲ -د هرې بهرنۍ الوتکې له الوتنې څخه ترافیکي خدمتونه ( ۷۵۰۰) افغانۍ اخېستل شوي دي.
۳ -هره بهرنۍ الوتکه چې له څلورو ساعتونو څخه زیاته په هوايي ډګر کې تم شوې،د درولو کرایه (پارکنګ ټکس) ور څخه اخیستل شوی دی.
۴ -هره بهرنۍ الوتکه چې په ټرانزیټي توګه زموږ د هېواد له فضا څخه تېرېږي، ( ۲۰۰۰۰) افغانۍ او یا د هغې معادل ۴۰۰ امریکایي ډالره ورڅخه اخېستل شوي دي.

## ب- د هېواد هوايي شرکتونه:

۱ - آریانا افغان هوايي شرکت لومړنی دولتي شرکت دی چې په ۱۳۳۳ لمریز کال کې یې د مسافرو او د سوداګرۍ د مالونو په حمل و نقل کې رسماً فعالیت پیل کړی. لو مړنۍ پانګه یې درې

سوه زره امریکایي ډالره وه چې په هغې کې ۵۱ سلنه د دولت ونډه او ۴۹ سلنه د انډیمان شرکت ونډه وه.
د دې شرکت لومړنۍ الوتنې د DC-۳ الوتکې په مرسته، چې د ۲۸ مسافرو ظرفیت یې در لود، له کابل څخه د کندهار، هرات او مزار شریف ښارونو ته کېدلې.
دوه کاله وروسته د انډیمان لوی شرکت دپان امریکن په شرکت کې مدغم شو او کله چې DC -۴ او DC -۶ په نوم دوه الوتکې وپېرودل شوې، د آریانا شرکت نړیوالو هوایي ډګرونو ته لار پیدا کړه. د آریانا افغان هوایي شرکت لومړنۍ بهرنۍ الوتنه له کابل څخه بحرین ته وه، چې د ۱۳۳۴ لمریز کال د غوایي په میاشت کې له ۲۸ مسافرو سره وشوه.
آریانا افغان هوایي شرکت له دې سره سره چې په درې لسیزو داخلي جګړو کې ډېر مالي، اقتصادي او کادري تاوانونه ولیدل، بیا هم ۴- AN ۲۱ الوتکه او۷۲۷- B څلور الوتکې ۳۰۰- Airbus یوه الوتکه او ۳۱۰ - Airbus نوی ماډل دوه الوتکې لري چې هره ورځ له پلان سره سم هرات، کندهار، مزارشریف، جلال آباد، زرنج، لښکرګاه، بادغیس، فیض آباد، کندز او مېمنې ته الوتنې کوي.
په همدې ډول، آریانا افغان هوایي شرکت د نړۍ ۱۷ لویو ښارونو ته هم الوتنې لري او د پراختیا په حال کې دی. د نړۍ هغه ښارونه چې آریانا ورته الوتنې لري ډهلي، امرتسر، تهران، مشهد، اسلام آباد، دوشنبې، ارومچې، باکو، مسکو، دوبۍ، شارجه، استانبول، انقره، ریاض، جده، کویټ او فرانکفورت دي.
آریانا افغان هوایي شرکت پر خپلو الوتنو سربېره، داخلي خصوصي شرکتونو او بهرنیو هوایي شرکتونو ته لکه: انډین ایر لاین، د آسمان هوایي شرکت، د آذر بایجان هوایي شرکت، د عرب متحدو آماراتو او د پاکستان هوایي شرکت ته هم لازم ځمکنې خدمات برابروي او د بار وړونکو لویو الوتکو (کارګو) بارول او تخلیه کول او نور لازم خدمتونه په چټکۍ سرته رسوي.
۲- هوایي خصوصي شرکتونه صافي ایرویز، پامیر او کام ایر دي چې د فعالیت جواز یې له پانګې څخه د افغانستان د ملاتړ له اداري څخه تر لاسه کړی دی او د خپلو الوتکو په مرسته کورنیو او بهرنیو کرښو کې په خدمت بوخت دي. پر عوایدو باندې د مالیاتو د قانون له مخې ۱۰ سلنه داخلي عواید او دوه سلنه بهرنۍ عواید پر هغه ټکس سربېره چې د هوانوردۍ وزارت او آریانا افغان هوایی شرکت ته ورکوي، د دولت خزانې ته یې هم تحویلوي. خو اوس یوازې د کام ایر هوایي خصوصي شرکت فعالیت لري.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د هوایي ډګرونو پر اهمیت او اقتصادي ارزښت باندې په خپلو کې بحث وکړي او پایلې دې ټولګیوالو ته ووایي.



## پوښتنې:

سم ځواب د (س) په توري او ناسم ځواب د (ن) په توري په نښه کړئ.

۱-د ملکي هوا نوردۍ ریاست په **۱۳۳۵** لمریز کال کې جوړ شوی دی.

۲-د کندهار هوایي ډګر له **۱۳۳۰** لمریز کال راهیسې د ګټې اخیستنې وړ دی.

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱- د هېواد نړیوال هوایي ډګرونه............او ......... دي.

۲- له هغو بهرنیو الوتکو څخه، چې په ټرانزیټي ډول د افغانستان له فضا څخه تېرېږي، له هرې الوتنې څخه............افغانی عواید لاس ته راځي.

لنډ ځواب ورکړئ:

۱-د بهرنیو شرکتونو د الوتکو له الوتنو څخه څومره عواید د دولت خزانې ته تحویلیږي؟

۲- د هېواد په کومو ولایتونو کې دوهمه درجه ملکي هوایي ډګرونه جوړ شوي دي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې په هېواد کې د هوایي ډګرونو د جوړولو د اړتیا په هکله، د ځمکې جوړښت او جغرافیایي موقعیت ته په پام سره په سیمه ییزه او نړیواله سطحه تبصره وکړي او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې دې بیان کړي.

# ۴,۴ – اړيکې Communication

## الف: د اړيکو اهميت:



اړيکې مخابراتو (د افکارو د راکړې ورکړې او د پيغامونو استولو او اخيستلو) او ټرانسپورټيشن ته وايي چې د تېرولوستونو د مواصلاتو په برخه کې ور څخه يادونه شوې ده. مخابرات Tele Communication د خلکو ترمنځ د ليکنو، غږونو، عکسونو يا د دوارو په واسطه د افکارو، احساساتو او اطلاعاتو راکړې ورکړې معنا لري. په بل عبارت، مخابرات د خبر، احوال، تجارتي، صنعتي، رسمي، شخصي پيغامو او معلوماتو د وړاندې کولو او رسولو وسيله ده چې له يوې سيمې څخه بلې سيمې ته کېږي او دننه بهر بېلابېلې سيمې سره نښلوي. د اړيکو ټينګولو لپاره له بېلابېلو ډولونو او وسيلو څخه ګټه اخيستل کېږي، لکه: اخبار، راډيو، ټلګراف، ټيلفون، ټلويزيون، پُست، فکس او

انټرنیت. دغه ټول له لیرې واټن څخه د اړیکو چټکې وسیلې دي. په اوسنۍ نړۍ کې غږ او عکس د الکټرونیکي بهیر په توګه د سیم، راډیو او ټلویزیوني څپو په واسطه د فضا له لارې او نوري څپې د نوري فایبر په واسطه سره نښلي. راډیویي او نوري څپې په یوه ثانیه کې د ۳۰۰۰۰۰ کیلو مترو په سرعت حرکت کوي او د الکټرونیکې نښو لیږد هم په همدې اندازه دي.

د مخابراتو د اهمیت په هکله د یادونې وړ ده چې د اړیکو دې برخې ته  د ټولنې د اعصابو اصطلاح ورکړ شوې ده. ځکه چې په ټولنه کې د افکارو د انتقال او راکړې ورکړې ښه وسیله ده. په هغو ټولنو او هېوادونو کې چې مخابرات یې ښه فعال دي، معنایې دا ده چې د ټولنې اعصاب یې ښه کار کوي او ټولنه هم ښه پر مخ تللې ده.

مخابراتي لومړنۍ وسیله د ټلګراف اختراع ده چې د مورس د نښو د اختراع له مخې د برېښنا د جریان په واسطه د سیم په  اوږدو کې لیږل کېده. نن ورځ عکسونه، غږونه، ټلویزیوني عکسونه د سپوږمکیو، راډیو او نوري فایبر له لارې له څو ثانیو څخه په لږه موده کې د نړۍ ګرد چاپېره مخابره کېږي.

مصنوعي سپوږمکیو د مخابراتو او اړیکو په برخه کې ډېر لوی انقلاب راوستی دی، چې د ټیلفون او مبایل، ټلویزیون او انټرنېټ د ټکنالوژۍ د پراختیا سبب شوی دی. پر دې سربېره، مصنوعې سپوږمکۍ له ځمکې څخه په بېلابېل لوړوالي عکسونه اخلي او خپلو ځمکنیو مرکزونو ته یې انتقالوي چې د هغو له مخې بېلابېل  تصویرونه او جغرافیایي نقشې جوړېږي.

اوس زموږ په هېواد کې هم د مخابراتو وزارت ملي او نړیواله ګیټ وې  Gate -way د کابل د ښار د مهتاب کلا په ساحه کې جوړه کړې ده. د ځمکني تم ځای او مصنوعي سپوږمکۍ په واسطه فعالیت کوي. یو لوی دیش او مخابراتي او تخنیکي پرمختللی

سیستم لري. له دې ګېټ وې څخه په ملي او نړیواله کچه ګټه اخیستل کېدی شي. اوس دولتي ارتباطات او مخابراتي شرکتونه د ټېلفوني، فکس، ټلویزیوني او انټرنیټي اړیکو لپاره له هغې څخه ګټه اخلي او د هېواد ۳۶۴ ولسوالۍ او ادارې د همدې ګېټ وې په مرسته له نړۍ سره نښتې دي. همدارنګه، د مخابراتو خصوصي شرکتونو د نړیوالو فعالیتونو لپاره د خپلواکه ګېټویو د ګټې اخیستنې اجازه هم ورکړ شوې ده. د نوري فایبر په مرسته د ځمکې له لارې د هېواد مخابراتي اړیکي له نړۍ سره را منځ ته شوي دی چې د مخابراتو د مصنوعي سپوږمکیو په پرتله خورا ارزانه تمامېږي.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په اوسنۍ نړۍ کې د اړیکو پر اهمیت په خپلو کې خبرې وکړي او د بحث پایله دې د ډلې یو غړی خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي. ښوونکی دې د فعالیت په پای کې وړاندې شوي معلومات را ټول او لنډیز یې زده کوونکو ته ووایي.

## پوښتنې:

د جملو تش ځایونه ډک کړئ:

۱- ارتباطات ۰۰۰۰۰۰-۰ او ۰۰۰۰۰۰ احتوا کوي.

۲-د نوري او راډیویي څپو سرعت په یوه ثانیه کې ........ کیلومتره دی.

۳-لومړنۍ اختراع شوې مخابراتي وسیله .......... دی.

لنډ ځواب ورکړئ:

۴-مخابرات تعریف کړئ.

۵-مصنوعي سپوږمکۍ کوم مخابراتي خدمتونه ترسره کولی شي.



**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

له مخابراتي و سیلو څخه دګټې اخیستنې څرنګوالي تر سر لیک لاندې یو مطلب ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

## ب. پُست Post په افغانستان کې

پوهېږئ چې د مخابراتو د وزارت د پُست رياست کوم خدمتونه ترسره کوي؟



پورتني انځور ته وگورئ او ووایاست چې د موټرو او بایسیکلونو سپرلی کومې چارې ترسره کوي؟

د افغانستان پُستي کارونو د لومړي ځل لپاره په ۱۸۷۰م. کال کې د امير شېرعلي خان په دوره کې رواج وموند. په هغه وخت کې يوه پُسته خانه په مرکز کې د کابل په بالاحصار کې د (چاپار خانې) په نوم او په لويو ولايتونو کې په ابتدائي ډول جوړې شوې. د يو مثقال او دوه مثقاله په وزن دولتي مکتوبونه او شخصي ليکونه يې په راجستر شوي ډول د پُسته خانې په مرکز کې منل. پُستي ټکټونه د شاهي او ثنار او د هغې وخت په مروجوسکو په بيه، په سپين کاغذ په کمزوري رنگ چاپ او د مکتوبونو او ليکونو له پاسه نصبول. د هغه وخت مشهور پُستي ټکټونه د زمري د سر په نامه يادېدل او له نصبولو څخه مخکې يې يو کنج غوځيده. د پُستي د انتقال

لپاره له یو مرکز څخه بل مرکز ته ټاکلی وخت په پام کې نه ونیول شوی. انتقالات د پُستې د ټاکلي حد تابع وو.

هغه دولتي مکتوبونه چې د فوري کلمه ور باندې لیکل شوې وه. فوق العاده پُسته ګڼل کېده. د پُسته بردار په نوم یادیده. دغه پُسته پر اس سپاره استوونکي له خوا چې د چاپار په نوم یادیده، اصلي ځای ته لیږدول کېده.

د مکتوبونو وېش د مستخدمانو له خوا کېده چې د لیک رسوونکي په نوم یادېدل.

که کوم دولتي مکتوب به بهرني هېواد ته استول کېده، د هغه استونه د ځانګړي قاصد له خوا ترسره کېده.

پورتنیو اجرااتو تر ۱۸۷۸م کال پورې دوام در لود. له ۱۸۹۲ م کال څخه وروسته، د امیر عبدالرحمن خان د واکمنی په دوره کې، د پُستې منظم کارونه رامنځته شول. په ۱۹۰۷م. کال، د امیرحبیب الله خان په دوره کې، پُستي کارونه ښه پرمخ ولاړل. پُسته خانې او پُستي کرښې زیاتې شوې. د دولتي مکتوبونو لپاره ځانګړي ټکټونه چاپ شول. په دې وخت کې د پُستې د فترونه د ډاکخانو په نوم یادېدل. یوه ډاکخانه په پېښور کې هم جوړه شوې وه. پُستي کارونه په اماني په دوره کې ډېر پراخت شول او د داخله وزارت په چوکاټ کې د پُست او ټلګراف عمومي مدیریت جوړ شو.

په ۱۹۲۵م کال کې د کابل او مشرقي تر منځ د لومړي ځل لپاره د پُستی د حمل او نقل لپاره له موټر څخه ګټه واخېستل شوه او د راکړې ورکړې یو دفتر په تورخم کې هم جوړ شو. نور دفترونه په اسلام کلا، د ایران په طیبات، د مزارشریف په تاشګذر، سپین بولدك او تور غونډۍ کې جوړ شول.

افغانستان په ۱۹۲۸م کال کې د نړۍ د پُستي اتحادیې غړیتوب حاصل کړ او د پُست اداره د ډیپلوماتیکو لارو د نړۍ د پُستي کنوانسیون د حکمونو ترسره کولو ته ژمنه شوه. پُستي سیستم مخ په سمون شو.

په ۱۳۴۴ لمریز کال کې د مخابراتو ریاست وزارت شو، د پُست د انتقال لپاره پُستي سرویس موټرونه له کابل څخه د تورخم او کندهار په لوري په کار واچول شول.
د افغانستان په پُسته کې پُستي قلمونه، لکه: مکتوبونه، پُست کارتونه،کوچنی بستې، چاپ شوي مواد، د ړندو پاڼې او پارسلونه شامل دي. د دې قلمونو تبادله د ځمکې او هوا له لارې، پر دننیو خدماتو سربېره، په نړیواله کچه د آریانا افغان هوایی شرکت له خوا ترسره کېږي.





## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د پُستې د سترو، سترو خدمتونو په اړه په خپلو کې بحث وکړي. د بحث پایلې دې د ډلې یو غړی ټولګیوالو ته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی دې د بحث پایله د خپلو معلوماتو په ورزیاتولو راټوله کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ووایاست:

۱-پُستي کاروانه د لومړي ځل لپاره د کوم پاچا په وخت کې مروج شول؟

۲-په پُستي خدمتونو کې کومې برخې شاملې دي؟

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱-د امیر شیرعلي خان د حکومت په وخت کې د کابل په بالاحصارکې پُسته خانه د ۰۰۰۰۰۰۰۰۰په نوم جوړه شوه.

۲- د امیر شیرعلي خان د حکومت په وخت کې بیرنۍ پُسته د اس په سپرلۍ، چې د ۰۰۰۰۰۰۰۰۰ په نوم یادیده، لیږدول کیده.

۳-د امیر حبیب الله خان د حکومت په دوره کې پُستي دفتر د په نوم یادیده.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې د یو پارسل دپاسه لازمې لارښوونې ولیکي، چې د پُستي له لارې په یو اروپایي هیواد کې مطلوب تن ته په مصؤون ډول ورسیږي.

# ج – ټېلفون او مبايل




ټېلفون داسې وسيله ده چې غږ لېرې او نژدې سيمو ته انتقالوي.

په لسمې پېړۍ کې د ارتباطاتو او رسنيو په برخه کې زياتې اختراعگانې را منځته شوې. لکه: عکاسي، سينما، چاپ او داسې نور، چې د خلکو په ژوند کې يې ستر بدلون راووست. خو ډېره مهمه اختراع ټېلفون او ټلگراف وو. چې د چټک تفاهم اړيکه يې له لېرې سيموسره را منځته کړه. ټېلفون له دوو کلمو څخه جوړ شوی دی. Tele د ويلو او phone د غږ په معنا دی.

د هېواد د ټېلفون لومړنی دستگاه د مسي سيمي لين په واسطه د امير حبيب اله خان او د هغه د ورور نصراله خان د استوگنې په ځای کې د يو کيلو متر په اوږدوالي فعاليت کاوه او بل لين يې د امير تر استوگنځي او د هغه وخت تر قوماندانی پورې او دربم لين يې د ارگ له دروازې څخه د بابر تر بڼ پورې غځيدلی و.

زموږ په هېواد کې د ټېلفون لومړنی بټری لرونکی سويچبورډ، چې د ۲۵ لينونو ظرفيت يې درلوده، د امير حبيب اله خان د واکمنی په دوره کې د ارگ په شمالي خلي (برج) کې جوړشو.

د غازي امان الله خان د پاچاهی په دوره کې په ۱۲۹۸ لمريز کال کې يو ۵۰ لينه سوچبورډ د شاه

دو شمشیره د پُسته خانې په ودانۍ کې نصب شو او ټیلفوني اړیکي د مرکز او نورو ښارونو تر منځ جوړې شوې. په همدې ډول د هېواد پلازمینه د ټلګراف په مرسته د لویو نړیوالو مرکزونو تر منځ وتړل شوه.

په لومړي سر کې په دولتي دایرو کې له ټیلفون څخه ګټه اخیستنه رواج شوه. وروسته، انفرادي اشخاصو هم وکولی شول چې د ولایت له مرکز څخه یو بل سره خبرې وکړي او شخصي او تجارتي پیغامونه سره ولېږي را ولېږي.

له ټیلفون څخه ګټه اخیستنه د سیمي لین د غځېدنې او د لویو لارو په اوږدو کې د پایو په نصبولو سره ممکن شوه. لومړني ټیلفون ځانګړی انډل درلوده چې د هغه په مرسته به له سویچبورډ (د خپرولو له مرکز) سره او له هغه ځایه به د سویچبورډ د مسؤولو کسانو (اپریټرانو) په مرسته مطلوب ارتباط را منځته کېده.

په ۱۳۲۲ لمریز کال کې د ۵۰۰۰ لینونو اتومات لومړنۍ دستګاه د المان د زیمنس له کمپنۍ څخه وپېرودل شوه او په کابل کې په کار واچول شوه. لومړنۍ ټیلفوني مخابره د کابل او پاریس ترمنځ ټینګه شوه. په همدې ډول، د پاریس د ټرانزیټ مرکزونو د افغانستان ټیلفوني مخابره د نړۍ له نورو هېوادونو سره ټینګوله.

په ۱۳۴۰ لمریز کال کې د مخابرې ټرانزیټ له ډهلي، لندن او مسکو سره هم ټینګ شو. وروسته، ټیلفون په پرمختللي ډول د انالوګ او ډیجیټل په بڼه تبدیل شو. د دې ټیلفوني مرکزونو ولایتي او نړیوالې اړیکې د سټلایټ (مصنوعي سپوږمکۍ) له لارې ټینګیږي.

## موبایل:

موبایل په ۱۹۸۰ م. کال کې د ارتباط د وسیلې په توګه و پېژندل شو او په ۱۹۸۳م .کال کې د امریکا د متحدو ایالتونو په شیکاګو کې د ټولو دګټې اخیستنې لپاره وړاندې شو. موبایل په کمزورو لنډو څپو کار کوي، چې پیغام د انټن اډې ته مخابره کوي او یا یې اخلي. ګټه اخیستونکی کولی شي له هر ځای څخه ټیلفون وکړي او یا پیغام تر لاسه کړي.

زموږ په هېواد کې په وروستیو دېرش کلنو جګړو کې ټولې مخابراتي شبکې تر یوې اندازې او یا په بشپړ ډول ویجاړې شوې او تر دې چې په وروستیو کلونو کې خلکو د نړیوالې مخابرې لپاره ګاونډیو هېوادونو ته سفرکاوه. د افغانستان غرنی جوړښت ته په پام سره او د یو زیات شمېر مهاجرو شتون



په باندې نیو هېوادونو کې، د ارتباطاتو د جوړولو په منظور لویې خصوصي کمپنۍ، لکه: افغان بیسیم او روشن په ۱۳۸۲لمریز کال کې، MTN په ۱۳۸٤ لمریز کال او اتصالات او افغان ټیلي کام په ۱۳۸۵لمریز کال کې فعالیت پیل کړ. نن په ټول هېواد کې په سلګونو زره ګډون وال لري، چې کولی شي په ټول هېواد کې د اړوندو انټنونو او له هېواد څخه د باندې د ارتباطي سپوږمکیو په مرسته خپلې ټېلفوني اړیکې جوړې کړي. زموږ د هېواد ټېلفوني کود ۰۰۹۳ دی. د دې کوډ په مرسته، له بهرنیو هېوادونو څخه په هېواد کې دننه ټېلفوني اړیکې ټینګېدلی شي.

له ټېلفون څخه په ګټه اخېستنه اقتصادي او تجارتي اړتیاوې او د خلکو ورځنۍ ستونزې ډېرې چټکې او لږ وخت کې حل کېږي. دا د خلکو ترمنځ د تفاهم ډېره چټکه او ارزانه وسیله ګڼل کېږي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي اوهره ډله دې د ټېلفون د اهمیت په هکله پخپلو کې بحث وکړي او پایلې دې د ډلې یو غړی ټولګیوالو ته وړاندې کړي. ښاغلی ښوونکی دی د بحث پایلې را ټولې کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ووایاست:

۱-ټېلفون په سوداګرۍ کې څه ارزښت لري؟ توضیح یې کړئ.

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱-زموږ په هېواد کې لومړی ځل ټېلفون..........د حکومت په وخت کې استعمال شو.

۲- زموږ په هېواد کې د موبایل لویې کمپنۍ .............او....... دي.

سم ځواب د( س) په توري او ناسم ځواب د (ن) په توري په نښه کړئ.

۱- په ۱۹ م. پېړۍ کې د اړیکو په برخه کې با ارزښته اختراع ټېلفون او ټلګراف دی.

۲-زموږ په هېواد کې له ټېلفون څخه لومړی ځل د غازي امان الله خان د پاچاهۍ په دوره کې ګټه واخیستل شوه.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

په ورځني ژوند کې د ټېلفون د اهمیت په هکله یو څو کرښې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# د: انټرنېټ، ايميل او فکس Internet, E–mail and Fax



## له انټرنېټي خدماتو څخه ګټه څنګه اخېستلی شو؟

له انټرنېټ څخه ګټه اخېستنه، د انټرنېټي شبکې، کمپيوټر او له هغې څخه د ګټې اخېستنې په طريقې پوهېدل اړين دي. انټرنېټ په ۱۹۶۷م .کال کې رامنځته شو، د انټرنېټ د رامنځته کولو فکر د امريکا د متحدو ايالتونو د دفاع له وزارت څخه پيل شو. په هغه وخت کې له انټرنېټ څخه د اطلاعاتو د تبادلې د باوري سيستم په توګه ګټه اخېستل کېده. وروسته، انټرنېټ د علمي زده کړو د سرچينې او د خو رسنيو له يوځای کېدو څخه را منځته شو. د ۱۳۶۹ لمريز کالونو په لسېزه کې په ټوله نړۍ کې په ميليونونو رسنيو د انټرنېټ له نړيوالې شبکې سره ونښتې. انټرنېټ هغه وسيله ده چې د نويوعلمي او فني پرمختګونو د اندازه کولو توان لري او د هغې له بشپړېدولو سره مرسته کوي.

انټرنېټ له دوو کلمو څخه جوړ دی. Inter يې له International يا نړيوال او Net يې له Network يا شبکې څخه اخېستل شوی دی.

انټرنېټ بې مثله نړيواله معلوماتي وسيله ده. هر څوک ورڅخه هر ډول معلومات تر لاسه کولی

شي.

انټرنېټ په حقیقت کې د سیستم یا شبکې نوم دی چې د نړۍ ټولې کمپیوټري شبکې سره نښلوي.
د انټر نېټ لپاره ډېر پروګرامونه جوړ شوي او د جوړېدو په حال کې دي. انټر نېټ د ایمیل یا برېښنا لیک لویه سر چېنه ده. څه موده مخکې، یوازې پیغامونه د انټرنېټ له لارې استول کېدل. اوس ټېلفون، ټلویزیون، راډیو اونور موضوعات د هغې پرمخ راتلی شي.
زموږ په هېواد کې انټرنېټي فعالیتونه د څوکمپنیو له لارې ترسره کېږي.
له انټرنېټ او ایمیل څخه د جغرافیې په مضمون کې څه ګټه اخېستل کېږي؟
له نورو جغرافیه پوهانو سره د اړیکو ټینګول د ایمیل E mail له لارې کېږي. انټرنېټ د دې امکان برابروي چې جغرافیه پوهان د نړۍ په بېلابېلو سیمو کې سره اړیکي ټینګې کړي او یو د بل په نظریاتو پوه شي.
ایمیل یا برېښنالیک: په انټرنېټ کې کولي شو له مطلوب شخص سره د هغه د ایمیل ادرس اړیکې ټینګې کړو. له نورو څخه مطالب تر لاسه کړو او یا علمي اطلاعات او داسې نور څه هغه ته واستوو.

## انټرنېټ او جغرافیه:

مینه وال کولی شي چې د پام وړ جغرافیایي موضوعګانو د موندلو لپاره، اړوندو انټرنېټي سایټونو ته ورننوځي او د اړتیا وړ اطلاعات، لکه: متن، عکسونه، نقشې او فلم تر لاسه کړي. نوموړي اطلاعات د پرنټر printer په مرسته چاپ او یا په کمپیوټر کې زېرمه او ثبت یا Save کړي.
د انټرنېټ ډېره لویه ګټه دا ده چې د هغه په مرسته بېلابېلې مو ضوعګانې پلټلای شو. موږ هر یو کولي شو چې د جغرافیایي اصطلاح، لکه: اوقیانوس، نقشه، مهاجرت او داسی نورو په لیکلو سره، د سایټ فهرست یا ادرس او یا د څېړنې د وسیلې Search Engine له لارې دقیق معلومات تر لاسه کړو. د جغرافیې د پلټنې په سایټونو کې کولی شو د Google, MSN, Amazon yahoo, Hot mail Gmail, او داسې نورو نومونه واخلو.
کله مو د فکس په مرسته پیغام استولی دي؟



پورتنی عکس په غور وګورئ او ووایاست چې دغه دستګاه د اړیکو د ټینګولو له مخې څه اهمیت لري؟

د فکس دستګاه په نړیوالو اړیکو کې مهم رول لري. دغه دستګاه په څو ثانیو کې استول شوي پیغامونه د لیکلي پیغام په توګه اخیستونکي ته د نړۍ هرې نقطې ته رسوي. د فکس دستګاه د فوټوکاپي ماشین ته ورته ده. خو په ټیلیفون سنباله ده. دغه دستګاه د پیغام د استولو په وخت، پیغام په کلمو او کرښې په الکترونیکي نښو، چې دانتقال وړوي، تبدیلوي. د پیغام اخیستونکې دستګاه، دغه لاس ته راغلې نښې په لیکلو نښو اړوي او دقیقه نسخه د اصلي نسخې په څېر بهر ته راباسي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د ایمیل او انټرنېټ د موضوعګانو او ګټو په هکله پخپلو کې بحث وکړي او د ډلې یو غړی دې د بحث پایله خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.همدارنګه ښاغلی ښوونکې دې د ډلې د فعالیت پایله دې را ټوله کړي.



## پوښتنې:

۱- انټرنېټ لومړی په کوم هېواد کې کار پیل کړ او د څه لپاره ورڅخه ګټه اخېستل کېده؟

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱-د انټرنېټ اصطلاح له دوه کلمو .........او ....څخه ترکیب شوې ده چې معنایې نړېواله شبکه ده.

۲-د جغرافیې مسألو د پلټنې سایټونه ......،......،......، او داسې نورو دي.

سم ځواب د (س) په توري او ناسم ځواب د (ن) په توري په نښه کړئ:

۱-په ۱۹۸۳ میلادي کال کې د اطلاعاتو په میلیونونو رسنۍ په ټوله نړۍ کې د انټرنېټ له شبکو سره وصل شوې.

۲- انټرنېټ د علمي زده کړې له سر چېنو او د ډېرو رسنیو له پیوستون څخه منځته را غلی دی.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي د انټرنېټ د امکاناتو په لرلو سره د جغرافیایي اصطلاحاتو، لکه: اور غورځونې د فعالیت او ټوریسم په هکله معلومات راټول، ثبت یا زېرمه کړي او خپلو ټولګېوالو ته دې د جغرافیې په راتلونکې ساعت کې وړاندې کړي.

# پنځم څپرکی
# نفوس او توکم

## ۵-۱ د نفوسو وېشل او ګڼوالی




په یوه کیلومتر مربع کې د نفوسو وېش

**پوهېږئ چې نفوس په ځمکه کې په څه ډول وېشل شوی دی؟**

د نفوسو د وېش پورتنۍ نقشه په غور ولولئ او وواياست چې ډېر زيات او ډېر لږ نفوس د نړۍ په کومه برخه کې ځای پرځای شوي دي او ولې؟

د نفوسو ګڼوالی د ځمکې د سطحې په یوه واحده ساحه کې د اوسېدونکو خلکو شمېر ته وايي.

د نفوسو د ګڼوالي د معلومولو لپاره بايد د يوې سيمې نفوس د همغې سيمې پر پراخوالي وو‌وېشل شي.

د نړۍ نفوس په ۲۰۱۸ میلادي کال کې ۷،٤ ميلیاردو تنو ته ورسيد. دغه نفوس په ټوله نړۍ کې مساوي نه دي وېشل شوي. په بل عبارت، اقليمي شرايط، د ځمکې جوړښت او نور اقتصادي، بشري او سياسي لاملونه د نفوسو پر تمرکز اغيز لري، لکه: دښتې سيمې (هغه تودې او سوځوونکې سيمې چې پوره اوبه هم ونه لري)، لوړې، نااواره سرې سيمې، د غرونو لړۍ، جبې، ګڼو او لنده بل

لرونکو ځنګلونو، استوايي تودې او لنده بلې هوا، قطبي سړې هوا، له سواحلو او د حمل او نقل له لارو څخه لېرېوالي، د نفوسو ډېر لږ پام ځانته ور اړولی دی. تر چې په ځينو سيمو کې د سلګونو کيلو مترو په واټن هم د انسانانو نښې په سترګو نه ښکاري. په داسې حال کې چې د ځمکې په بله سيمه کې، لکه: په ښو اقليمي شرايطو ( معتدله آب و هوا او پوره باران)، مناسب جغرافيايي موقعيت، هوارو او ښېرازو ځمکو، پوره اوبو لرونکو ځمکو، د سيندونو او سمندرونو پر غاړو، بندرونو، د صنايعو، کانونو او ارتباطي لارو په شا و خوا کې ډېر خلك اوسېږي، چې د ځينو ځايونو په يوه کيلومتر مربع کې له زرو څخه زيات خلك ژوند کوي. په دې ترتيب، په يوه سيمه کې د نفوسو استوګنه د فزيکي، اقتصادي سياسي او بشري لاملونو پايله ده چې د دې لاملونو اغېزې لنډه بيانوو:

• **د فزيکي عواملو اغېزې**: جغرافيايي موقعيت ( عرض البلدونه)، لوړې سيمې، اقليمي شرايط، اوبه او داسې نور د ځمکې پرمخ د تل لپاره ليدلی شو چې مستقيم يا غېر مستقيم د ځمکې د منابعو څخه پر ګټه اخيستنې باندې اغېز لري. دغه لاملونه د نفوسو د زيات ګڼوالي او يا برعکس د يوې سيمې د نفوسو د کموالي لامل کېږي.

• **د اقتصادي لاملونو اغېزې**: په طبيعي منابعو او بشري فعاليتونو ولاړې دي چې له کانونو، اوبو، د خاورې له ډولونو، نباتاتو، حيواناتو، د پانګې په شتون او نوې تکنالوژۍ، د کار په شرايطو، صنايعو او داسې نورو څخه عبارت دي، چې د نفوسو پر ګڼوالي اغېز لري؛ يعنې د صنعتي پراختيا او د نفو سود ځای پر ځای کېدنې تر منځ متقابلې اړيکې شته دی. په هر ځای کې چې د صنعت او له هغه څخه وروسته هغه پورې تړلي خدمتونه را منځته شي، نو زيات نفوس په هغې سيمې کې جذبېږي.

د يادونې وړده چې تر ۱۸ ميلادي پېړۍ پورې کرنې او د هغې اړوند لاملونو (اوبو، خاورې، او اقليم) د نفوسو په استوګنې ټاکونکې اغېزه درلوده، لکه: په مصر کې د نيل د سيند وادي او داسې نورې.

زموږ د هېواد اقتصاد تر اوسه پورې پر کرنه ولاړ دی او د نفوسو ډېره زیاته برخه له همدې لارې ژوند کوي.

• **د سیاسي لاملونو:** په دې برخه کې د حکومت پرېکړې او د اداري مرکزونو له تشکیل څخه یادونه وکړو که چېرې دولت د هېواد ځینو سیموته د پرمختیایي پروګرامونو په برخه کې پانګې اچونې، د کارونو پیداکولو او یا خدماتي امکاناتو او روغتیایي فعالیتونو ته پاملرنه ونه کړي، د نفوسو ګڼوالی هلته لږ وي.

• **بشري لاملونه:** په پورتنیو موضوعاتوسر بېره لېرې پرتې سیمې، چې د حمل و نقل لارې او د اړېکو نیولو وسایل په لاس کې نه لري، خلک هلته په تیت او پرک ډول ژوند کوي.

د هغو لویو وچو دننه سیمې چې له سیندونو او سمندرونو څخه لېرې پرتې دي، د ساحلي سیمو په پرتله لږ تجارتي امکانات لري او لږ نفوس پکې استوګنه کوي.

پورتنیو لاملونوته په پام سره د نړۍ ګڼ نفوسه سیمې Densely population region کولی شو په درې حوزو په نښه کړو:

۱- لومړنۍ ګڼ نفوسه سیمه د آسیا د لویې وچې جنوبي سیمه ( پاکستان، هند او بنګله دېش)، د جنوب ختیځې آسیا ځینې برخې ( اندونیزیا) او ختیځه آسیا (د چین ختیځ، د کوریا ټاپو وزمه او جاپان) ده.

د دې سیمې په هېوادونو کې په منځني ډول د نفوسو ګڼوالی په یوه کیلومتر مربع مساحت کې له ۱۰۰ تنوڅخه او په ځینو ځانګړو ځایونو کې په یوه کیلومتر مربع مساحت کې له ۱۵۰۰ تنوڅخه زیات دی. چې لامل یې موسمي آب و هوا، د کرنې ( د وریجو کرنې) ښه شرایط او د نفوسو طبیعي زیاتوالی دی.

۲- دوهمه ګڼ نفوسه سیمه د اروپا په لویه وچه کې د پانګوالی په دوره کې رامنځته شوې ده. د دې سیمې به ځینو هېوادونو کې د نفوسو منځنی ګڼوالی په یوه کیلومتر مربع مساحت کې له

۲۰۰ څخه تر ۴۰۰ تنو پورې رسېږي. په همدې ډول، په صنعتي سيمو کې د نفوسو ګڼوالي په يوه کيلومتر مربع مساحت کې له ۵۰۰ څخه تر ۱۰۰۰ تنو پورې رسېږي. چې ډېر زيات يې د سيندونو پر غاړه، په بندرونو او د صنعتي مرکزونو په شا و خوا او د کرنې وړ سيمو کې ژوند کوي.

دريمه ګڼ نفوسه سيمه د امريکا د متحدو اياالتونو شمال ختيځې سيمې ځينې برخې (نيو انګلنډ، نيو يارک، پنسلوانيا او د پنځه ګونو جهيلونو شاوخوا) او د کاناډا جنوب ختيځ دی چې لامل تجارتي يې او صنعتي فعاليتونه دي.

## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي. پخپلو کې په مشوره دې لاندني جدولونه کاپي او بشپړ کړي او د ډلې استازی دې ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

| موقعيت | د نفوسو د مېشت کېدلو لاملونه |
|---|---|
| د چين ولسي جمهوريت او هند | |
| شمال لويديځه اروپا | |
| د امريکا د متحدو اياالتونو شمال ختيځ او د کاناډا جنوب ختيځ | |
| د هماليې غرونه | |
| د امازون ځنګلونه | |
| د ګرينلينډ ټاپو | |

په لاندې جدول کې د نفوسو منځنۍ ځای پرځای کېدنه په مالټا، بنګله دېش او استرالیا کې محاسبه کړئ.

| ګڼه | هېواد | د هېواد مساحت په کیلو متر مربع | نفوس | د نفوسو ګڼوالی په یوه کیلو متر مربع مساحت کې |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | موناکو | ۲ | ۳۲۲۷۰ تنه | ۱۶۱۳۵ تنه |
| ۲ | سنګاپور | ٦٤٧ | ٤,۳٥۳,۸۹۳ تنه | ٦۷۲۹,۳ تنه |
| ۳ | مالټا | ۳۱٦ | ۳۹٦,۸٥۱ تنه | |
| ٤ | بحرین | ٦٦۸ | ٦۷۷,۸۸٦ تنه | ۱۰۱٤ تنه |
| ٥ | بنګله دېش | ۱٤۷٥۷۰ | ۱٤۱,۳٤۰,٤۷٦ تنه | |
| ٦ | مغولستان | ۱,٥٦٥,۰۰۰ | ۲,۷٥۱,۳۱٤ تنه | ۱,۷ تنه |
| ۷ | استرالیا | ۷,٦۸٦,۸٥۰ | ۱۹,۹۱۳,۱٤٤ تنه | |
| ۸ | کاناډا | ۹,۹۷۰,٦۱۰ | ۳۲,٥۰۷,۸۷٤ تنه | ۲/۳ تنه |

## پوښتنې:

لنډځواب وواياست:

۱. د آسیا د جنوب او جنوب ختیځو هېوادونو د نفوسو دګڼوالي لامل بیان کړئ.

۲. د اروپا په شمال لویدیځ کې د اروپا د نورو سیمو په نسبت ګڼ نفوسه سیمې ولې زیاتې را منځته شوې دي.

۳. د شمالي امریکا کومې سیمې ګڼ نفوسه دي؟ لامل یې بیان کړئ.

۴. د آسیا د ډېرګڼ نفوسه هېوادونو نومونه واخلئ.

۵. د نړۍ په ټولو برخو کې نفوس ولې مساوي نه دي وېشل شوي؟

۶. کوم سیاسي لاملونه د نفوسو په ګڼوالي زیات اغېز لري، څرنګه؟

۷. بشري عوامل کولی شي د نفوسو پر ځای پرځای کېدنې اغېز وکړي؟څرنګه؟

سم ځواب په نښه کړئ.

۱- کوم طبیعي لاملونه په یوه سیمه کې د نفوسو دګڼوالي سبب کېږي؟

الف: مناسب اقلیمي شرایط او اوبه

ب: لوړې او سړې قطبي سیمې

ج: ګڼ او لنده بل لرونکي استوایي ځنګلونه

د: ټول ځوابونه سم دي

۲- کوم اقتصادي لاملونه په یوه سیمه کې د نفوسو دګڼوالي سبب کېږي؟

الف: ابتدائي کرنه

ب: په صنایع کې پانګونه

ج: د پرمختیایي پلانونو پلي کول.

د: ټول ځوابونه سم دي



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

لاندې پوښتنې ته ځواب ووایاست او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

که ستاسې ټولګی ۶ متره اوږد والی او ۴ متره سور ولري او د زده کوونکو شمېر په کې ۶۰ تنه وي، مهرباني وکړئ، د ټولګي په یوه متر مربع کې د نفوسو ګڼوالی محاسبه کړئ.

ستاسې له نظره د ټولګي د زده کوونکو مناسب شمېر باید څو تنه وي؟ ولې؟

# ۲,۵ په نړۍ کې د نفوسو د زیاتوالي او لږ والي ستونزې




په ۲۰۰۹ م کال کې د نړۍ د زېږونونو ډېروالی

د نفوسو موضوع د پراختیا له مخې د دوو جلا عنوانونو لاندې لوستل کېږي.

## ۱- د نړۍ په هېوادونو کې د نفوسو زیاتوالی:

د نړۍ نفوس په ډېرې چټکۍ سره زیاتیږي؛ ځکه چې د زېږون اندازه Birth Rate د مړینې له اندازې Death Rate څخه زیاته ده.

د شلمې پېړۍ په پیل کې دغه د نفوسو زیاتوالی په کال کې **۱۰** میلیونه تنه، د همدې پېړۍ په نیمایي کې په کال کې **۳۵- ۴۰** میلیونو تنو پورې او اوس له **۶۰** څخه تر **۶۵** میلیونو تنو پورې په کال کې زیاتېږي.

د ملګرو ملتونو د احصائیې له مخې د نړۍ نفوس

## ( اضافي معلومات )

| کال | د ځمکې ټول نفوس |
|---|---|
| ۱۹۰۰ میلادی | ۱،۶۱۷ ملیارده تنه |
| ۱۹۴۰ // | ۲،۲۵۲ ملیارده تنه |
| ۱۹۶۰ // | ۲،۹۸۲ ملیارده تنه |
| ۱۹۷۰ // | ۳،۶۱۰ ملیارده تنه |
| ۱۹۷۹/ | ۴،۳۳۶ ملیارده تنه |
| ۲۰۰۸// | ۶،۶۰۰ ملیارده تنه |
| ۲۰۱۰ // | ۶،۸ ملیارده تنه |
| ۲۰۱۸// | ۷،۴ ملیارده تنه |

د پورتني جدول له مطالعې څخه دې نتیجې ته رسیږو چې د نړۍ نفوس په وروستیو تقریباً ۵۰ کلونو کې په ډېره چټکۍ زیات شوی دی.

د نفوسو دغه زیاتوالی په دوو لاملونو پورې اړه لري:

- د نفوسو طبیعي زیاتوالی.
- د نفوسو میخانیکي زیاتوالی.

الف: د نفوسو طبیعي زیاتوالی: Natural Tncreasre

د نفوسو دغه زیاتوالی د زېږون په زیاتوالي او د مړینې په کموالي پورې اړه لري. د مثال په ډول، که په یوه هېواد کې زېږون په زرو کې ۴۰ وي او مړینه په زرو کې ۲۰ وي، د نفوسو زیاتوالی به ډېر زیات وي.
د نفوسو زیاتوالی په ډېرو لاملونو پورې اړه لري چې ډېر زیات مهم یې په یوه هېواد کې ټولنیز اقتصادي او فرهنګي لاملونه دي. په تېره بیا د وقایوي او معالجوي طب وده او پرمختیا د نفوسو په زیاتوالي ډېر اغېز لري چې له یوه پلوه د مړینې د کموالي سبب کېږي او له بله پلوه منځنی عمر اوږدېږي. خو د نفوسو دغه زیاتوالی د نړۍ په ټولو هېوادونو کې یو ډول نه دی. موږ کولی شو چې دغه ټول پر دوو برخو ووېشو: لومړی ډول د شمالي امریکا او اروپا پانګه والو هېوادونو او د چین او روسیې ځانګړتیا ده. د هغو

خصوصیات ډېره لږه زیږونه ده چې نور هم د کمي په حال کې دي او لاملونه یې ډول دي:
۱- په پرمختللو هېوادونو کې ښاري نفوس زیات وي. ښکاره ده چې زیږونونه په ښاري کورنیو کې له کلیوالي کورنیو څخه لږ وي.
۲- په دې هېوادونو کې ښځې ټولنیزو کارونو ته جلب او جذب شوي دي. معمولاً هغه ښځې چې له کور څخه د باندې کار کوي، نسبت هغو ښځو ته چې د کور دننه کار کوي، د ماشومانو شمېر یې لږ وي.
په پرمختللو هېوادونو کې د زیږېدنو او مړینې دواړو شمېر لږ وي. د نفوسو طبیعي زیاتوالی ۰,۵ - ۱ سلنه یا په زرو کې له ۵- ۱۰ پورې وي. کله یې اندازه له دې څخه هم کمه وي. دغه لږ زیاتوالی د پرمختللو هېوادونو ځانګړتیا ده.
دوهم ډول زیاتوالی د مخ پر ودې هېوادونو لکه آسیایي، افریقایي او د لاتیني امریکا ځانګړتیا ده چې په لاندې لاملونو پورې اړه لري:
د اقتصادي ودې ډېره ټېټه سطح، د میکانېزه (ماشیني) کرنې نه شتون، بیسوادي، د اکثریت خلکو له پاره د حفظ الصحې نشتوالی، له ناوړه فرهنګ څخه د ښځو پیروي او د هغوی له وخت څخه مخکې نکاح او داسې نور.
په آسیایې، افریقایي او د لاتیني امریکا په هېوادونو کې د روغتیایي خدماتو د سمون په پایله کې په مړینه کې کمی راغلی دی همدغه لامل دی چې د نفوسو زیاتوالی چټکېږي. له زیاتو زیږونونو سره جوخت د نفوسو طبیعي زیاتوالي چټکېږي، چې د نفوسو دغه زیاتوالی له ۲ څخه تر ۳ سلنې پورې د تغییر په حال کې دی او په هرو زرو تنو کې له ۲۰ څخه تر ۳۰ پورې زیاتوالی راځي. دغه زیاتوالی زیاتره د وروسته پاتې ټولنو او هېوادونو ځانګړتیا ده.
د پرمختللو صنعتي هېوادونو او مخ پر ودې هېوادونو د نفوسو د ودې د پرتلې لپاره د عمر هرم په راتلونکي مخ کې وګورئ. د عمر په هرم کې افقي کرښې د نفوسو شمېر په سلنو او په عمودي کرښو باندې د نارینه او ښځینه وو شمېر په مختلفو عمرونو ښودل کېږي. ماشومان او نوي ځوانان ( له صفر څخه تر ۱۸ کلنۍ) او سپین ږیري ( له ٦٥ کلنۍ څخه د زیات عمر خاوندان) معمولاً اقتصادي فعال نفوس نه ګڼل کېږي. لویان ( له ۱۵ - ۶۵ کلنۍ پورې) اصلي تولیدوونکي او اقتصادي فعاله ډله ګڼل کېږي. د نړۍ په بېلابېلو برخو کې د عمر هرمونه سره توپیر لري. مخ پر ودې هېوادونو، لکه مکسیکو کې د هرم قاعده لویه وي؛ یعنې په هرو ۱۰۰ تنو کې زیات نفوس له ۰- ۱۵ کلنۍ پورې وي. د غه هېواد ځوان نفوس لري. هغه هېوادونه چې ډېر زیات ځوان نفوس لري، باید د ځوانانو د اړتیاوو د پوره کولو له پاره، په تېره بیا د ښوونې او روزنې او د هغوی لپاره د کار په پیدا کولو کې پانګه په کار واچوي. په پرمختللو صنعتي هېوادونو، لکه سویډن کې زیږون او مړینه دواړه لږ دي او ژوند ته زیات هیله من دي. په دې هېواد کې د هرم قاعده کوچنۍ ده او







فعال اقتصادي نفوس زيات دی. خو نفوس ورو ورو د سپين ږيريتوب په لوري روان دي.

دغه شمېرنه بايد د يوه کال په اوږدو کې ترسره شي. پايله يې له سلنې سره اعلان شي. کله چې زېږون له مړيني څخه زيات وي، د نفوسو زياتوالی طبيعي دی.

د نفوس طبيعي زياتوالی = (د زېږون شمېر − د مړينې شمېر) / ټول نفوس

**ب: د نفوسو ميخانيکي زياتوالی:**

د نفوسو له طبيعي زياتوالي سره يوځای، د نفوسو ميخانيکي خوځښت يا مهاجرتونه هم د نفوسو په زياتوالي کې د پام وړ اغېز لري.

په هېواد کې دننه مهاجرتونه يوازې د نفوسو د بيا ځای پرځای کېدنې سبب کېږي او د هېواد نفوس تغيير نه کوي خو له هېواد څخه د باندې مهاجرتونه د نفوسو پر شمېر باندې اغېز لري. که هېواد ته له باندې څخه مهاجرتونه له هېواد څخه بهر ته د مهاجرتونو په نسبت زيات وي، د نفوسو ميخانيکي زياتوالی را منځته کېږي او برعکس يې د نفوس د کمي سبب کېږي د يوه هېواد د نفوسو په مطلقې ودې کې بايد پر زېږون او مړينې سر بېره مهاجرتونو ته هم پام وشي.

د نفوسو مطلقه وده = ( د زېږېدنو شمېر − د مړينې شمېر) + هېواد ته له باندې څخه مهاجرت.

د نفوسو مطلقه وده = ( د زېږېدنو شمېر − د مړينې شمېر) − له هېواد څخه نورو هېوادونو ته مهاجرت او د نفوسو ډېره زياته طبيعي او ميخانيکي وده د اضافي نفوسو over popalation مسأله رامنځته کوي. د اضافي نفوسو اصطلاح هغه وخت استعمالېږي چې په يوه سيمه کې د زېرمو

له شته امکاناتو څخه زیات نفوس استوګنه ولري او یا له ټاکلو ټولنیزو موخو څخه زیات وي. کله ښایي نفوس مناسب وي، خو نامناسب ویش رواج ولري. په ځینو مأخذونو کې د مناسب نفوس اصطلاح کارول شوې ده. خو دغه اصطلاح هم کوم ټاکلي تعریف نه لري. اضافي نفوس نسبي اصطلاح ده چې په سیمه کې له منابعو څخه د ګټې اخیستنې په اندازې پورې اړه لري. د مثال په ډول، پرمختللي هېوادونه له مخ پر ودې هېوادونو څخه له همدې موجودو زېرمو څخه د خلکو له پاره ښه کار او زیات امکانات برابر کړي دي. له همدې امله، د اضافي نفوسو مطالعه د ټکنالوژۍ د پرمختګ په کچې پورې اړه لري.

په پای کې ویلی شو چې د نفوسو چټکه وده او د زېږېدنو زیاتوالی د وروسته پاتې هېوادونو ځانګړتیا ده. د نفوسو دغه طبیعي زیاتوالی اقتصادي بودجه محدودوي او فشار پرې زیاتوي او کارونه پر ټپه دروي. په ښخوانیو وختونو کې صحي خدمات زیات نه وو پراخ شوي؛ قحطي، ناروغي او جګړې د نفوسو د محدودولو لاملونه وو. خو نن نفوس په بې ساري ډول زیات شوی دی او وروسته پاتې هېوادونه له لوږې، ناروغیو او بېکارۍ سره لاس وګریوان دي. دغه بېکاري د بېوزلۍ او بېوزلي د فقر او یا غیر قانوني مهاجرتونو سبب کېږي.

ټولنپوهان دغه زیات زیاتوالي ته د نفوسو چاودنه وایي او ټولنې ته یې زیات خطر بولي. د نړۍ ټول نفوس چې په ۲۰۱۰م کال کې ۶,۸ میلیارده وو، په ۲۰۵۰ میلادي کال کې یې د اټکل له مخې ۹ میلیاردو او په ۲۱۵۰ میلادي کال کې ۱۱ میلیاردو ته د رسیدو وړاندوینه شوې ده چې که کنټرول نه شي نو نړۍ به له فاجعې سره مخامخ کړي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي او لاندې جدول دې کاپي او بشپړ کړي او د هغو پوښتنو ځوابونه دې ووایي چې له جدول څخه لاندې لیکل شوې دي. د ډلې استازی دې هغه خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

| هېوادونه | د نفوسو ګڼوالی په یوه کیلومتر مربع ساحه کې | زېږېدنې په ۱۰۰۰ تنو کې | مړینه په زرو تنوکې | طبیعي زیاتوالی په زرو تنوکې | د نفوسو د ودې سلنه |
|---|---|---|---|---|---|
| برازیل | ۱۸ تنه | ۲۶ | ۸ | ۱۸ | ۱،۸ |
| ایتوپي(حبشه) | ۴۷ تنه | ۴۹ | ۱۹ | | |
| جاپان | ۲۳۰ تنه | ۱۲ | ۸ | ۴ | ۰،۴ |
| سعودی عربستان | ۸ تنه | ۳۶ | ۵ | | |
| آلمان | ۲۲۹ تنه | ۱۱ | ۱۲ | | |
| کنیا | ۴۷ تنه | ۴۳ | ۱۰ | ۳۳ | ۳،۳ |
| د امریکا متحده ایالتونه | ۲۳۹ تنه | ۱۴ | ۹ | | |
| فرانسه | ۱۰۶ تنه | ۱۳ | ۱۰ | | |
| بنګله دېش | ۷۹۱ تنه | ۴۱ | ۱۴ | | |

الف: د دغو هېوادونو د نفوسو طبیعي وده، چې معلومه نه ده، محاسبه کړئ.

ب: د ټولو هېوادونو طبیعي وده په سلو کې محاسبه کړئ.

ج: کولی شئ چې هېوادونه د نفوسو د لږې او زیاتې ودې له مخې سره ووېشئ. دغه کار څرګنګه کېدې شي؟



## پوښتنې:

۱- مخ پرودې هېوادونو کې کوم لاملونه د نفوسو د چټکې طبیعي ودې سبب کېږي؟
۲- د نړۍ پر پرمختللو هېوادونو کې کوم لاملونه د ورو ودې باعث کېږي؟
۳- په یوه هېواد کې کوم لاملونه د اضافي نفوس د ودې سبب کېږي؟
۴- د اضافي نفوس د اصطلاح هدف څه دی؟ څرګند یې کړئ.
۵- د ټولنې د عمر په جوړښت او ترکیب کې د طبیعي نفوسو چټکه وده څه ډول ده؟ واضح یې کړئ.
۶- په هغو هېوادونو کې، چې د نفوسو وده یې ورو ده، د ټولنې د عمر جوړښت څه ډول دی؟ توضیح یې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

زموږ د هېواد نفوس په چټکۍ زیاتېږي؟ که دغه نفوس په همدې ډول زیات شي، څه ستونزې به رامنځته کړي؟ د نفوسو د زیاتوالي مخه څنګه نیولی شو؟

شپږوېشتم لوست:

## د نړۍ په ځینو هېوادونو کې د فعالو اقتصادي نفوسو د لږوالي ستونزې.




تاسې په تېر لوست کې د اضافي نفوسو په باره کې معلومات حاصل کړل. اوس د نفوسو د کمي ستونزې مطالعه کوو. د نفوسو کنټرول په هغو هېوادونو کې چې اضافي نفوس لري، ګټور کار دی. خو په ځینې نورو هېوادونو کې، د نفوسو د کنټرول له مخې د زېږول شمېر له مړینې څخه لږ دی. همدغه کار د دې لامل کېږي چې د بوډاګانو نفوس، چې عمر یې له ۶۵ کلنۍ څخه زیات وي، متقاعد او د ناتوانو خلکو شمېر زیاتېږي. صنایع د بشري قوې له کمي سره مخامخ کېږي او د صنایعو پرمختګ محدودېږي. په پای کې له موجودو بشري استعدادونو څخه په ټولنه کې ګټور نه اخیستل کېږي. دغه حالت په هغو هېوادونو کې چې د فعالو اقتصادي نفوسو په کمي Depopulation اخته وي (۱۸ څخه تر ۶۵ کلنۍ) لیدل کېږي او د شتو صنایعو او منابعو د په کار اچولو لپاره اقتصادي فعالو نفوسو ته اړتیا لري. نو مجبوراً باید دغه اړتیا د

زېږېدنو د هڅونې (د مثال په ډول اروپايي هېوادونو کې، چې د فعالو اقتصادي نفوسو له کمي سره مخامخ دي، معمولاً د کورنيو د هڅونې او ډالۍ ورکولو او يا د کورنۍ د کار او ژوندانه د وسايلو او د ماشومانو د ساتنې ځانګړو اسانتياوو ته په پام سره هڅول کېږي). يا هېواد ته د بهرنيو مهاجرو په جلبولو سره پوره کوي.

په پای کې ويلی شو چې اضافي نفوس اوکم نفوس دواړه حالتونه هېواد ته ستونزې پېښوي. يو انګليسي ټولنپوه، مالتوس، باور درلود چې د ځمکې سرچېنې د نفوسو د اړتياوو په نسبت، چې هره لحظه يې شمېر مخ په زياتيدو دی، محدودې دي. کورنۍ بايد د زېږون د محدودولو له لارې کنټرول شي. له دوهمې نړيوالې جګړې څخه وروسته، د نفوسو دغه بې ساری زياتوالی د نړۍ د اقتصادي ستونزو $\frac{۲}{۳}$ برخې جوړوي. د ۱۹۵۰ ميلادي کلونو په لسيزه کې پرمختللو هېوادونو، مخ پر ودې هېوادونو ته د اقتصادي او فرهنګي پرمختګ له پاره د کورنيو د غړو د محدودولو وړانديز وکړ. هند لومړنی هېواد و چې د کورنيو د محدودولو له پاليسۍ سره يې په ۱۹۵۲ ميلادي کال کې موافقه وکړه. دغه پاليسي وروسته په چين او مصر کې هم پلې شوه. د چين په دې برخه کې زيات برياليتوبونه په برخه شول. د نفوسو د زياتوالي ضريب چې ۱۹۵۵ ميلادي کال کې ۴ سلنه و، په ۱۹۹۶ ميلادي کال کې ۱,۷ سلنې ته راښکته شو، چې د هغې له مخې هرې چينايي کورنۍ ته له يوه ماشوم څخه د زياتو ماشومانو زېږونه منع شوه. په داسې حال کې چې په هند کې د نفوسو د زياتوالي ضريب له ۲،٦ - ۳،۹ سلنه دی.

د مالتوس د نظريې برخلاف، ځينې ټولنپوهان باور لري چې زيات نفوس د توليداتو د زياتوالي او اقتصادي ودې سبب کېږي؛ نو د نفوسو د زياتوالي موضوع بايد ازاده پرېښودل شي. له همدې امله، ځينې هېوادونه د کورنيو له محدودولو سره مخالفت کوي اوګڼ نفوسه کورنۍ هڅوي. دغه پاليسي په ۱۹۳۰ ميلادي کال کې په نازي آلمان کې پلې شوه.

همدارنګه، په بلجيم، سويډن، انګلیستان او فرانسې کې يې هم په بېلابېلو وختونو کې پلويان درلودل. د درېمې نړۍ په ځينو هېوادونو کې له خپلواکۍ وروسته د بزګرانو او کار ګرانو د زياتوالي لپاره او پر بهرنيانو باندې تکيه نه کول، د نفوسو د زياتوالي د پاليسي پلوي کوله. په پای کې ويلی شو، په هغو شرايطو کې چې د لګښت وړ منابع او د نفوسو اندازه سره متناسبه نه وي او د مصرف کوونکو فشار له اندازې څخه زيات وي، ويلی شو چې په زېرمو فشار شته. که د نفوسو د زياتوالي ضريب کم نه شي، دغه فشار نور هم زياتيږي. بل عبارت، که د يوه هېواد د اقتصادي ودې پلان د نفوسو له زياتوالي سره متناسب نه وي، اقتصادي او ټولنيزې ستونزې را منځته کوي. د نفوسو لړوالی هم د اقتصادي ودې پر ټپه درېدلو او د صنايعو د نه پرمختګ او د هېواد د وروسته پاتې کېدو لامل کيږي.



## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشي. هره ډله دې په لاندې موضوعاتو پخپلو کې بحث وکړي او د پايله دې، د ډلې استازي خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.
زموږ د هېواد طبيعي سرچينې د هېواد د نفوسو اړتياوو ته ځواب ويلی شي يا نه؟
که د هېواد اړتياوو ته ځواب ويلی شي، نو زموږ خلک ولې بېوزله او بېکاره دي او بهرنيو هېوادونو ته د کار لپاره کډه کولو ته اړکيږي؟ په دې برخه کې پخپلو کې بحث وکړئ.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ووایاست

۱- په مخ پر ودې زیاتو هېوادونو کې ولې د کورنیو په محدودولو ټینګار کېږي؟

۲- د کورنیو محدودول څه پایلې لري؟

۳- د کورنیو محدودول په کومو هېوادونو کې اغېزمن دي؟

٤-ولې ځینې هېوادونه د کورنیو د محدودولو مخالف دي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

لاندې موضوع تحلیل کړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

اضافي نفوس په یوه هېواد کې د کومو ستونزو سبب ګرځي. د هغې لپاره د حل کومه لاره وړاندې کوئ؟

# ۳.۵ • مهاجرتونه او لاملونه يې



**مهاجرت څه ته وايي او څو ډوله مهاجرتونه پېژنئ؟**

مهاجر يا Immigrant هغه چا ته ويل کېږي چې د استوګنې ځای ته بدلون ورکړي او د يوه اداري واحد څخه بل اداري واحد يا بل هېواد ته نقل مکان شوی وي. مهاجرتونه د انسانانو د تاريخ په اوږدو کې سرته رسېدلي او بېلابېل ډولونه لري چې ځينې په هېواد کې د ننه کېږي، لکه: کليوال چې ښارونو، صنعتي سيمو او نوو کرنيزو ځمکو ته مهاجر کېږي او داسې نور. ځينې نور له نړيوالو سرحدونو څخه تېرېږي او بهرنی مهاجرت بلل کېږي.

دغه مهاجرتونه په بېلابېلو هېوادونو کې په مختلفو ډولونو سره تر سره شوي دي. نومورې زياتره مهاجرتونه اختياري مهاجرتونه دي چې پخپله خوښه د زياتې اجورې او ښه ژوند له پاره کېږي.

خو اجباري مهاجرتونه هم کېږي چې خلک د سياسي او نظامي شخړو په سبب مهاجرت ته اړ شي. هغه خوک چې په هېواد کې د ننه نقل مکان کوي، په هېواد کې د ننه د بېځايه شويو په نوم يادېږي. د ملګرو ملتونو د ارقامو له مخې شمېر يې په ۱۳۸۷ لمريز کال کې ۲۴ ميليونه و او هغه خلک چې له نړيوالو سرحدونو څخه اوړي، د پناه اخيستونکو په نوم يادېږي. لکه: فلسطينيانو چې په عربي

هېوادونو کې او افغانانو په ګاونډیو او د نړۍ په نورو هېوادونو کې پناه اخیستې ده. د هغو پناه اخیستونکو ټول شمېر ۱۶ میلیونو ته رسېږي چې افغانان هم په کې شامل دي. ځینې مهاجرتونه لنډ مهاله دي چې لومړني ځای ته د بېرته راګرځېدو نیت لري. لکه: زموږ د هېواد کوچیان چې د آب و هوا، ځر ځایونو او د موسم د تغیر له مخې بیا بېرته لومړني ځای ته راګرځي. دایمي مهاجرتونه هم شته چې لومړني ځاي ته د راګرځیدو نیت نه لري.

مهاجرتونه بېلابېل لاملونه لري چې کولای شو ځینې برخې یې دلته یادې کړو:

۱. طبیعي لاملونه: طبیعي لاملونه هم د مهاجرت سبب ګرځي لکه: په سیمه کې د اوبو کمښت، د آب و هوا د شرایطو خرابتیا، د خاورې کمزورتیا یا طبیعي آفتونه، لکه: زلزله، سېلابونه، سمندري طوفانونه، وچکالي او داسې نور.

۲. اقتصادي لاملونه: اقتصادي لاملونه د مهاجرت بنسټیز لاملونه ګڼل کېږي. اوس دغه مهاجرتونه د مخ پر ودې هېواد ونو ځانګړتیا ده. ځکه په دې هېواد ونو کې د کلیو او ښارونو ترمنځ ډېره نا برابري ده. په داسي حال کې چې په پر مختللو هېوادونو کې د کلیوالو ژوند په ډېره چټکۍ سره ښاري ژوند ته نژدې شوی دی. برعکس په دې هېوادونو کې ښاري خلک مینه لري چې له ښار څخه د ښار څنډو او کلیو ته مهاجرت وکړي چې په پاکه هوا او چاپېریال کې په ارامه ژوند وکړي.

په مخ پر ودې هېواد ونو کې د دې مهاجرت اصلي لامل اقتصاد دی. د کلیوالو لږ عایدات یوازې لومړنۍ اړتیاوې پوره کوي نو نشي کولای چې په کلیو کې اقتصادي فعالیت په مخ بوځي. له بلې خوا د نفوسو د طبیعي ودې په وجه په کلیو کې ځمکه او اوبه د ټولو اوسېدونکو د اقتصادي فعالیت له پاره کافي نه دي. د کرنې ماشیني کېدل هم د یو زیات شمېر بزګرانو د بېکارۍ سبب ګرځي او مهاجرت ته اړ کېږي.

دغه مهاجرین چې زیاتره یې ځوانان دي او په ښار کې خپله دنده له بزګرۍ څخه په غیر بزګري کارونو بدلوي په ښارونو کې دغه مهاجرین هغه دندې چې لاس ته یې راوړي هم نا کافې دي. ځکه هغوی ماهر کارکوونکي نه دي، نو په هغو کارونو لاس پورې کوي چې سطحه یې ټیټه او عاید یې لږ وي لکه: لاسي خرڅلاو او درانه فزیکي کارونه او داسې نور. نو په پای کې په لومړني استوګنځي او یا هغه ځای ته چې د ژوندانه لپاره یې ورته سترګې نیولې وي د نفوسو په زیاتوالي او کمښت، د نفوسو د عمر په ترکیب، د کار قوه، بېکارۍ، مزدورۍ، همدارنګه فرهنګ، او ژبه اغېزه کوي.

د اقتصادي مهاجرتونو بل ډول د کرنیزې ځمکې په پراختیا، د اوبو لګولو په نویو پروژو، صنعتي سیمو د کانونو په را ایستلو او تجارتي فعالیتونو او یا برعکس د کورنیو عاید کموالي، بیکاري، د کارخانو

تعطیل په سبب منځته راځي.

۳. سیاسي مهاجرت: دغه اصطلاح زیاتره د سیاسي پناه اخیستونکو له پاره کارول کېږي. هغه چا ته کارول کېږي چې د بېلابېلو لاملونه له مخې لکه: جګړې، ډار، سیاسي تعقیب، مذهبي عقایدو، د ټولنیزو ډلو د اړیکو او هغه قومي اقلیتونه چې اصلي هېوادونه یې پرې ایښي دي او له بل هېواد څخه یې د پناه اخیستنې غوښتنه کړې وي لکه: افغاني پناه اخیستونکي چې له ۱۳۵۷ لمریز کا ل څخه وروسته یې ګاونډیو او د نړۍ هېوادونو ته مهاجرت کړی دی او یا د بوسني او هرزه ګوني د پخوانۍ (یو ګوسلاویا) پناه اخېستونکي او په افریقا کې د روندا د کمپ پناه اخیستونکي او د سوډان د دافور پناه اخیستونکي او داسې نور. په جینوا کې د ۱۹۵۱ میلادي کال د کنوانسیون پرېکړې، د پناه اخیستونکو د حالت په هکله او د هغو حقونو څخه د دفاع له پاره په یو مهم سند بدل شوی دی. د پناه اخسېتونکي او یا د پناه غوښتونکي اصطلاح هغه چا ته ویل کېږي چې په اصلي هېواد کې د عقیدتي ایډیالوژیکي او سیاسي، نژاد، ژبې، ملیت او قوم له مخې د تعقیب او یا عملاً (روحي او فزیکي) زندان او مړینې یا شکنجې تر خطر لاندې وي.

د اقتصادي او سیاسي مهاجرینو ترمنځ ګډ ټکي یوازې له هېواد څخه جلاتوب او بېوزلي ده. د اقتصاد له مخې مهاجرت، مهاجرو پخپله منلی دی او د خپلې اقتصادي بنې په ښه والي پسې ګرځي. په داسې حال کې چې دو یم یې (سیاسي مهاجر) ځان قرباني بولي، سره له دې چې په ارامه او مطمینه فضا کې ژوند کوي.

۴- مذهبي مهاجرتونه: دغه ډول مهاجرتونه په مذهبي او نورو ټولنیزو او فرهنګي مسایلو باندې د قیوداتو او محدودیتونو د وضع کولو له مخې کېږي. د دې ښه مثال په ۱۹۴۷ میلادي کال کې په هندوستان او پاکستان باندې د هند د لویې نیمې وچې وېش و چې د هغه په پای کې په میلیونو د هندی و مذهب د پېروانو کورنۍ له پاکستان څخه هند ته او په مقابل کې په میلیونونو مسلمانو کورنیو له هند څخه پاکستان ته پخپله خوښه مهاجرت وکړ. په لنډه توګه ویلی شو، هغه لاملونه چې د مهاجرت سبب ګرځي دا دي: اقتصادي، بېکارۍ، طبیعي افتونو، سیاسي، مذهبي، فرهنګي او داسې نور لاملونه.

هغه لاملونه چې د مهاجرینو د جذب او هڅونې سبب ګرځي، دا دي د ښه ژوندانه امکانات، ښه ښوونه او روزنه، د استوګنې ښه ځای او په کورنیو پورې تړاو.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ. زده کوونکي دې په لاندې موضوعګانو پخپلو منځو کې بحث وکړي او د مباحثې پایلې دې د ډلو استازي ټولګیوالوته وړاندې کړي.

۱. په هېوادکې د ننه مهاجرت او له هېواد څخه بهر مهاجرت.
۲. د مهاجرت اقتصادي لاملونه.
۳. هغه لاملونه چې د هغو له مخې افغانان نورو هېوادونو ته مهاجر شوي.
۴. که چېرې مهاجرت له کلیو څخه ښارونو ته ادامه ولري، په کلیو او ښارونو کې څه ستونزې رامنځته کوي. تاسې د دې مهاجرت د کمولو له پاره د حل کومې لارې وړاندې کوئ.



## پوښتنې:

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱. د کوچیانو مهاجرت زموږ په هېواد کې --------- مهاجرت دی.
۲. د فلسطینیانو مهاجرت د اردن او لبنان هېوادونو ته ------ ډول مهاجرت دی.

لنډ ځواب ووایاست:

۳. کوم طبیعي لاملونه د مهاجرت سبب ګرځي؟
۴. ولې د مخ پر ودې هېوادونو خلک له کلیو څخه ښارونو ته او د پرمختللي هېوادونو خلک برعکس له ښارونو څخه کلیو ته له مهاجرت سره مینه لري؟
۵. د څو اقتصادي ډوله مهاجرتونو نومونه واخلئ.
۶. کوم سیاسي لاملونه د مهاجرت سبب ګرځي؟
۷. د ۱۹۵۱ میلادي کال د اپریل کنوانسیون چې په ژینو کې لاسلیك شو، پناه اخیستونکي یې څه ډول تعریف کړ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې په دې موضوع چې ولې له مخ پر ودې هېوادونو څخه خارجي مهاجرتونه کېږي؛ او د دې مهاجرتونو د مخنیوي له پاره د حل کومې لارې وړاندې کوئ؛ یوه مقاله ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته واوروئ.

اته ویشتم لوست

# نړیوال مهاجرتونه او د پایلې یې



په معاصره دوره کې د مهاجرینو نقشه

## ولې خلک له هېواد څخه بهر مهاجرت سره مینه لري؟

لکه چې په تېرو لوستونو کې یادونه وشوه، مهاجرت د دوو لاملونو له مخې کېږي.

۱ . نامساعد لاملونه، لکه: طبیعي، اقتصادي، ټولنیز، سیاسي او مذهبي لاملونه چې په مخکینیو لوستونو کې ورڅخه یادونه شوې ده.

۲ .جذبوونکي لاملونه، لکه: د یوې ساحې د نفوسو کموالی، راښکونکې سیمې، د ځمکې لاندې منابع، د کار زیاتوالې او ډېره اجوره.

مهاجرتونه د تاریخ په اوږدو کې رامنځته شوي دي او تر اوسه جریان لري. ځینې په هېواد کې دننه وي چې په هېواد کې دننه مهاجرت په نوم یادېږي، ځینې له نړیوالو سرحدونو څخه په تېریدو سره کېږي چې د بهرنیو مهاجرتونو په نوم یادېږي. مهاجرین غواړي چې د اړونده هېواد له سیاسي، اقتصادي یا ټولنیزو شرایطو څخه ګټه واخلي. د آریایانو مهاجرتونه ختیځ، جنوب او لویدیځ ته او یا د امریکا لویې وچې ته د ختیځې آسیا د خلکو مهاجرت او همدارنګه نړیوال مهاجرتونه په ۱۵ م پېړۍ د جغرافیایي لویو اکتشافونو په پایله کې زیات شول او د نړۍ نورو سیمو ته د اروپایانو د مهاجرت سبب شو. په هغه وخت کې په یوه نیمه پېړۍ کې ۷۰ میلیونه تنه مهاجر شول چې له خپلې پانګې څخه په نوې نړۍ کې ګټه واخلي او په سوداګرۍ لاس پورې کړي. په پایله کې د امریکا او اوقیانوسیې لویې وچې ګڼ نفوسه شوې. چې ښه مثال یې د شمالي امریکا

هېواد ونه دي. چې ۹۵ سلنه نفوس يې اروپايي مهاجرين او ۲ سلنه يې افريقايي تورپوستي دي.
د ۱۹ پېړۍ په ټوله دوره کې د نفوسو زياتوالی او اقتصادي بحران د مهاجرتونو سبب شو چې
په نتيجه کې يې د اروپا د اضافي نفوسو بار کم شو. يوازې د انگلستان په هېواد کې له ۱۸۱۵
ميلادي څخه تر ۱۹۲۰ ميلادي پورې ۱۷ ميليونه تنو مهاجرت پيل کړ. دغو مهاجرتونو
دوه اړخونه درلودل، دايمي مهاجرين او د اداري کارکونکو او مذهبي مبلغينو مهاجرت چې
موقتي جنبه يې لرله. د دې دوو مهاجرينو له ترکيب څخه د بريتانيا امپراتوري رامنځته شوه
چې وروسته دغه مهاجرتونه په بېساري ډول په نړيواله ستونزه بدل شول او هېوادونه يې اړ کړل



چې د مهاجرينو د منلو يو لړ قوانين وضع
کړي. د امريکا د متحده ايالتونو کانگرس
د مهاجرينو د مخنيوي له پاره په ۱۹۲۴
ميلادي کال کې د مهاجرينو په نوم قانون
تصويب کړ. دغه قانون امريکا ته په هغه
شمېر مهاجرين چې له بېلابېلو هېوادونو
څخه کولی شي امريکا ته راشي،
مقررات وضع کړل. نوموړي قانون زيات
د هغو مهاجرينو مخه نيوله چې د جاپان
او چين ژېړ توکم پورې يې اړه درلوده.
وروسته د نورو هېوادونو په باره کې هم عملي شو. د دې مقررې له مخې که مهاجرين خپله
پانگه هم له ځانه سره يوسي، هغوی کولای شول چې له پنځو کلونو وروسته په امريکا کې د
اوسېدنې تابعيت حاصل کړي او يا له امريکا څخه خارج شي. اوس بر عکس زياتره نړيوال
مهاجرين د دريمې نړۍ له هېوادونو څخه پرمختللو صنعتي هېوادونو ته ځي چې بنسټيز لاملونه
يې اقتصادي او سياسي دي. کله چې د يوې کورنۍ عايدات يوازې د لومړنيو اړتياوو پوره کول
وي او يا حد اقل معاش وي، هغوی د دې توان نه لري چې په هېواد کې دننه پانگه اچونه وکړي.
له بلې خوا ورځ په ورځ نفوس زياتېږي او د نفوسو طبيعي زياتوالی او داسې نور مشکلات د
دې سبب گرځي چې خلک له کليو څخه ښارونو او نورو هېوادونو ته مهاجرت وکړي. څرنگه
چې هغوی د مهاجرت له پاره قانوني اسناد نه لري نو له غير قانوني او قاچاقي لارو څخه استفاده
کوي. نو د ستونزو په منلو او آن د مړينې منلو سره ځانونه ټاکلي هېوادونو ته رسوي. دغه نفوس

د یوه هېواد فعال اقتصادي نفوس له ۱۵ کلنۍ څخه تر ٦٥ کلنه پورې احتوا کوي. څرنګه چې د هغوی یو شمېر د کار کولو رسمي ویزه او کار کولو اجازه او د کار ځانګړې مهارت نه لري نو له همدې امله لږ معاش او خراب چاپېریال کې چې د دولت له نظارت څخه لېرې وي، سخت او غیر صحي کارونو ته مخه کوي.

د یادونې وړ خبره دا ده چې یو شمېر پر مخ تللي پانګه وال هېوادونه د نفوسو د طبیعي کنټرول له مخې د بشري قوې له کمښت سره مخامخ دي چې د دې ستونزې د حل له پاره د قانوني لارې مهاجر کارکوونکي مني. په لویدېځه اروپا کې تقریباً ۱۱ میلیونه مهاجر کارکوونکي کار کوي. د مهاجرو کارکوونکو د منلو له مخې المان په لومړۍ درجه کې دی، ورپسې انګلستان، فرانسه، سویس او سکندیناوي هېوادونه دي.

د لویدېځې اروپا هېوادونه په وروستیو کلونو کې له ګاونډیو هېوادونو ایټالیې، پرتګال او هسپانیې موسمي مهاجرو کارکوونکو د کموالي د احساس له مخې، د جنوب ختیځې اروپا، ترکیې، د انتیل د ټاپوګانو او د افریقا د هېوادونو کارګرانو ته متوجه شول. المانیان معمولاً د ترکیې او یوناني مهاجرو کارکوونکو څخه، فرانسویان د شمالي افریقا د مهاجرو کارکوونکو څخه او انګلستان د مشترک المنافع هېوادونو له کارکوونکو څخه ګټه اخلي. د امریکا متحده ایالات د مکسیکو له موسمي کارکوونکو څخه کار اخلي.

په همدې ډول د نړۍ د پرمخ تللو پانګه والو هېوادونو څخه مخ پر ودې هېوادونو ته هم مهاجرت کېږي. د هغوی پانګه، په کار کې پوهه په تېره بیا د هغوی کاري تجربه ده چې په خپلو هېوادونو کې یې حاصله کړې ده.په کال کې د دې مهاجرینو شمېر تقریباً له ۲۰۰ څخه تر ۳۰۰ زرو پورې رسېږي چې د کار او د ښه ژوند په لټه کې خپل هېوادونه پرېږدي او د لویو وچو ترمنځ په مهاجرت لاس پورې کوي. نوې سیمې دغه مهاجرین په پرانیستې غېږه او زیاتو امکاناتو او ښه ژوند په برابرولو مني. بهرني مهاجرتونه، له هغه هېواد ونو څخه چې مهاجرت کوي د نفوسو د کمښت او هغو هېوادونو ته چې مهاجر کېږي، د نفوسو د زیاتوالي سبب ګرځي. د مخ پر ودې هېوادونو ټول مهاجرین ځوان او فعال اقتصادي نفوس تشکیلوي. د دې مهاجرت له مخې د مخ پر ودې هېوادونو فعال اقتصادي نفوس کمېږي چې په پای کې د اقتصادي رکود سبب ګرځي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي. د لاندې موضوعګانو په باره کې دې په خپلو منځو کې بحث وکړي او د مباحثې پایلې دې د ډلې مشر په ټولګي کې ولولي.

۱ .د یوه هېواد کوم نا مساعد عوامل اوسېدونکي د وطن پرېښودو ته اړ باسي؟ دغه ستونزه په خپلو کې وارزوئ.

۲ . کوم لاملونه د مهاجرینو د جذب سبب ګرځي؟ زموږ له هېواد څخه زیات مهاجرین کومو هېوادونو ته تللي دي. ولې؟

۳ . تاسي له کلو څخه ښارونو ته د مهاجرینو د کموالي او مخنیوي لپاره او یا له وطن څخه بهرنیو مهاجرتونو له پاره څه وړاندیز لرئ؟

٤ . د هېواد په اقتصاد او نفوسو باندې د بهرنیو مهاجرتونو اغېزې ترکتنې لاندې ونیسئ.

۵ . د مخ پر ودې او د پانګه والو هېوادونو د مهاجرینو شرایط پرتله کړئ.



### پوښتنې:

۱ . کوم لاملونه د مهاجرینو د جذب سبب ګرځي؟

۲ . کوم لاملونه د مهاجرینو مخه نیسي؟

۳ . د جغرافیایي لویو اکتشافاتو څخه وروسته، کومو لویو وچو زیات مهاجرین منلي دي؟

۴ . ولې د امریکا د متحده ایالاتو کانګرس په ۱۹۲۴ میلادي کال کې امریکا ته د مهاجرینو قانون وضع کړ؟

۵ . کوم لاملونه له دریمې نړۍ څخه پر مخ تللي صنعتي هېوادونو ته د مهاجرت سبب ګرځي؟

۶ . کومو مهاجرتونو ته قانوني او کومو مهاجرتونو ته غیر قانوني مهاجرتونه وایي؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زموږ په هېواد کې کوم لاملونه د کورنیو او بهرنیو مهاجرتونو د زیاتوالي سبب ګرځي.

د دې تحلیلي مطلب په باره کې مقاله ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# ۵. ۰۴ نژادونه



په نړۍ کې ولې بېلابېل توکمونه او نژادونه شته؟

**الف: توکم (نژاد)**

توکم د خلکو هغې ډلې ته ویل کېږي چې د ظاهري څېرې، د پوستکي او ویښتانو رنګ، بېلوونکو نښو او ارثي ګډې ځانګړتیاوې ولري. د نړۍ ټول خلک په درېو اصلي توکمونو وېشل شوي دي. چې له سپین یا اروپایي توکم، ژېړ یا مغولي توکم او تور یا استوایي توکم دي.له یادو شوو توکمونو څخه هر یو توکم ځانګړي ارثي مشخصات لري، لکه: د ویښتانو شکل او رنګ، د پوستکي رنګ او د سترګو، پزې او د سر د کوپړۍ جوړښت او داسې نورې ځانګړتیاوې.

**سپین توکم (نژاد)**: لوړه ونه، سپین پوستکی، جګه پزه او خرمایي ویښتان او پرانیستې سترګې، ځانګړې بڼه او داسې نور.

**ژېړ توکم**: ژېړ پوستکی، تور او صاف ویښتان، لږه ږیره،ګرد سر، بادامي سترګې، لنډه پزه، ټیټه ونه او لږ غونډې چاغ وي.

**تور توکم (نژاد)** تور یا نصواري ته ورته پوستکی او پلنه پزه، ګرګوتي ویښتان او پرېړې شونډې لري.

ګډ یا دوه رګه توکم: د مهاجرتونو او د مختلفو توکمونو تر منځ د ودونو په پایله کې منځته راغلي دي لکه: مولات او سامبو توکمونه.

**سره پوستکي**: اصلاً په ژېړ توکم پورې اړه لري خو د مذهبي عقیدو له مخې په مخ او وېښتانو نکریزې وهي. نو له همدې امله د سور پوستو په نوم مشهور شوي دي.

ستاسې په نظر د نوموړو توکمونو په منځته راتللوکې کوم لاملونه اغېزه لري؟ په داسې حال کې چې ټول انسانان له یوه مور او پلار څخه یعنې آدم (رض) او بي بي حوا (ع) څخه پیدا شوي دي.

پوهان دې پوښتنې ته داسې ځواب وایي:

توکمونه د طبیعي چاپېریال د بېلابېلو شرایطو، اقلیم او خوړو سره د تطابق له مخې چې په انساني ژوند باندې اغېزه لري، رامنځ ته شوي دي. نوموړي طبیعي شرایط په بېلابېلو توکمونو اغېزه کوي. د مثال په ډول په کومو ځایونو کې چې تور پوستي ژوند کوي، د لمر وړانګې په عمودي ډول لګېږي او د هوا تودوخه زیاته وي او لمر د سیمې د اوسېدونکو په پوستکي په مستقیم ډول اغېزه کوي، له اړتیا او اندازې څخه زیاته تودوخه انسانانو ته تاوان اړوي. نو له همدې امله ددې هېوادونو د اوسېدونکو جسم ( اورګانېزم) د زرګونو کلونو په تېرېدو سره له اندازې څخه د زیاتې تودوخې سره توافق کړی دی او په پای کې د تور رنګه نسجونو ماده یې په پوستکی کې را ټولېږي. دغه نسجي ماده (میلانین) د پوستکي ایپدرمس رنګینه طبقه داسې حجرات لري چې د پوستکي رنګ جوړوي، ژېړ، نسواري، سور او آن تر دې چې تور رنګ لرونکي وي.

د هغو خلکو پوستکی چې ډېر میلانین لري د بدن پوستکی یې زیات تور وي، دغه ماده د لمر د وړانګو د نفوذ مخه نیسي او پوستکي د لمر په وړانګو له سوځېدو څخه ژغوري. د وخت په تېرېدو سره په دې ډله کې د پوستکي توروالی میراثي ګرځي، زیړه او ګړګوتي وېښتان د سر کوپړۍ له تودوخې څخه ساتي.

سپین پوستي زیاتره په شمالي معتدله سیمو کې ژوند کوي. په داسې سیمو کې زیات اورښت، لندبل او زیاتره وریځ وي او خلک یې له لمر څخه لږه ګټه اخلي نو له همدې امله یې بدن زیات لمر ته اړتیا لري. د هغوی په بدن کې د میلانین ماده یوازې په اوړي کې زیاتېږي. هغه وخت

چې د انسان بدن د لمر د وړانگو په واسطه د اړتیا وړ ویټامین ډي جوړ کړي د انسان پوستکی غنم رنگه گرځي.
په هغو ځایونو کې چې ژېړ پوستي ژوند کوي، په هغو ځایونو کې معمولاً باد او طوفانونه لگېږي چې له ځان سره خاورې، میده شگې انتقالوي. د کلونو په تېرېدو سره له دې بادونو او طوفانونو سره توافق کوي او د ژېړ پوستي سترگې تنگېږي چې و کولای شي د خاورې او شگو په وړاندې وساتل شي. دغه نښه په ژېړ پوستو کې ارثي گرځي او د زیاتره خلکو ورځني خواړه وریجې وي، چې ډېر لږ غذایي مواد لري. ټول توکمونه د ذکاوت او استعداد له مخې توپیر نه لري، د هغوی ظاهره څېره لکه چې ورڅخه یادونه وشوه د طبیعي او محیطي شرایطو محصول دی.
۱۹۶۵ م کال د ملگرو ملتونو عمومي غونډې د ټولو ډولونو توکمیز توپېر د له منځته وړلو لپاره نړیواله معاهده لاسلیک کړه. د هغې له مخې یې د هر ډول نظریاتو خپرېدل چې په توکمي امتیازاتو ولاړ وي، منع کړل. توهین او د هر ډول توکمیز توپېر لپاره هڅې جنایت گڼي. دغه موضوع زموږ د هېواد اساسي قانون د دویم فصل په ۲۲ ماده کې درج شوې ده چې د افغانستان په اتباعو کې هر ډول تبعیض او امتیاز منع دی. د افغانستان اتباع ښځې دي او که نارینه، د قانون په وړاندې مساوي حقونه او وجایب لري.

## په ټولگي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مساوي ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په لاندې موضوع گانو په خپلو منځو کې بحث وکړي او د بحث پایله دې د ډلې د استازي په واسطه خپلو ټولگیوالو ته وړاندې کړي.

۱-په بشري توکمونو کې کوم توکم ذکي او ډېر مستعد دي؟
۲-ولې تور توکمي تور پوستي او ظاهري ځانگړې څېره لري؟
۳-ولې سپین توکمي ظاهري ځانگړي خصوصیات لري ؟
۴-سور پوستي د نړۍ په کومه لویه وچه کې استوگن دي او د څېرې د سوروالي علت یې توضیح

کړئ؟

۵-ګډ توکم په څه ډول منځته راځي؟

## پوښتنې:

لنډ ځواب ور کړئ:

۱-د تور پوستو ظاهري ځانګړتیاوې بیان کړئ.

۲-سور پوستي په نړۍ کې په کوم توکم پورې اړه لري؟

سم ځواب په نښه کړئ:

۱-د نړۍ ټول خلک په څلورو توکمونو لکه: سپین، سور، تور او ژېړ توکم وېشل شوي دي.

۲-سپین توکمي لوړه ونه، سپین پوستکی، جګه پزه، تور ګوړګوتي ویښتان لري.

۳- توکمونه د بېلابېلو طبیعي محیطونو، اقلیم او خوړو محصول دي.

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱-ګډ توکمونه د مهاجرت او د ودونو په وجه منځته راغلي لکه۰۰۰۰۰او ۰۰۰۰۰۰

۲-د اساسي قانون د دویم فصل ۰۰۰۰۰۰۰۰ مادې له مخې د افغانستان د اتباعو ترمنځ هر ډول تبعیض او امتیاز منع دی.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

لاندې موضوع تحلیل کړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته واوروئ.

زموږ د هېواد خلک په کوم توکم پورې اړه لري. د هېواد اساسي قانون په کومه ماده کې هر ډول تبعیض منع کړی دی.

## ب: د توکمونو جغرافیایي وېش




په آسیا کې د ژبو او نژادونو د وېش نقشه

د نړۍ په کومو لویو وچو کې د سپین نژاد، او تور نژاد نفوس متمرکز شوی دی؟

د آسیا د لویې وچې نفوس له بېلابېلو توکمونو څخه جوړ شوي دي چې زیاتره یې ژېړ توکمي دي او پاتې نور یې سپین پوستي او تور پوستي دي.

د هغوی د جغرافیایي وېش په باره کې لنډ معلومات وړاندې کېږي.

### د آسیا د لویې وچې توکمیز ګروپونه:

**الف ژېړ توکم:** د آسیا په لویه وچه کې د دې توکم خلک د نورو توکمونو په پرتله ډېر دي. مغل، تبتیان، ساموېدیان، ترکمنان، قرغېزیان، د شمالي چین خلک، کوریایان په لږ څه توپیر همدغه توکمي ځانګړتیاوې لري، د جنوب ختیځې آسیا خلک جنوبي چین، کامبوج، لاوس، تایلند، برما او ویتنام او آن د جاپان وګړي چې د پوستکي

رنګ یې روښانه دی، د همدغه توکم خلك دي. د دې توکم ځینې فرعي ډلې د شمالي سایبریا د تندرا او تایګاه په ځنګلونو ( ستنې ډوله پاڼې لرونکي ځنګلونو) کې د څو زریزو خلکو د ډلې په څېر ژوند کوي.

**ب- سپین توکم**: په هندوچین کې د سپین پوستو توکم نسبتاً لږ شمېر موندل کېږي چې په ابتدایي ډول ژوند کوي. د سپین پوستو د استوګنې اصلي ځای د همالیا د غرونو د لړیو لویدیځې سیمې او د هند نیمه وچه ده. افغانان، ایرانیان، بلوڅان، قفقازیان او روسان د سپین توکم ښې بېلګې دي. همدارنګه سامي توکم په عربستان، سوریه، اردن، اسرائیل، د ترکیې یوه برخه او کردستان کې استوګن دي، په سپین غنم رنګه توکم پورې اړه لري.

**ج: تور توکم**: تور توکم په استوایي سیمو کې ژوند کوي چې توکم پېژندونکي هغوی ته نګریتو Negritos وایي. دغه تور پوستي کوړې کوړې ویښتان لري چې سوچه بېلګه یې په سیلون، هند کې د همالیې د غره په جنوب کې، د ملاکا په ټاپو وزمه، د اندیمان او نیکوبار په ټاپوګانو کې تیت شوي دي. دغه خلك په نیمه ابتدایي حالت کې ژوند کوي او زیاتره یې په ځنګلونو کې استوګن دي او د همالیا د غرونو په جنوب کې استوګنه کوي.

## د اروپا د لویې وچې توکمیزې ډلې:

د اروپا اوسېدونکي سپین پوستي دي او په شمالي، ختیځ، الپي، دیناریکي او مدیترانه یي ډلو وېشل شوي دي. شمالي او ختیځ سپین توکم برخې د استوګنې ځای سکندیناوي هېوادونه، انګلستان، د فرانسې شمال، المان، لهستان(پولینډ) د روسیې اروپایي برخه ده، الپي توکم یې د اروپا په مرکزي او لویدیځو برخو کې استوګن دي. په داسې حال کې چې مدیترانه یي توکم څانګه یې غنم رنګه څېره لري د مدیترانې د سمندرګي په شاوخوا هېوادونو کې ځای پر ځای شوي دي د اروپایي توکم دیناریکي برخه په البانیه او د ختیځې اروپا په ځینو هېوادونو کې ژوند کوي. لاپنیان د اروپا په ډېره شمالي برخو کې استوګن دي.



په اروپا کې د نژادونو د وېش نقشه

## د افریقا دلویې وچې توکمیزې ډلې:



په افریقا کې د نفوسو وېش

د افریقا توکمیزې ډلې تور پوستي، عربان، بربریان، آسیایان او اروپایان تشکیلوي. تور پوستي د افریقا ۷۰ سلنه نفوس جوړوي، چې ټول یې د لویې صحرا په جنوب کې استوګن دي. تور توکم هم په څلورو ډلو وېشل کېږي چې بانتو، نیلوت Nelotes پیګیمي Pygmies بوشمن Bushmen او هوتن‌تت Hottentots دي.

د دې هرې ډلې په څېره کې زیات توپیرونه لیدل کېږي. بانتو د افریقا د تور پوستو ډېره لویه ډله ده چې د افریقا په لویدیځ کې په تېره بیا د دې سیمې د ساحل په اوږدو کې په مرکزي افریقا کې، په ختیځ او جنوب ختیځ برخو کې او د مادغاسکر په ټاپو کې ژوند کوي.

د هغوی د بدن پوستکی قهوه یي، پلنه پزه، ډبلې شونډې او تاو تاو ویښتان لري.

نیلوت خلک جګه ونه لري (۱۸۳ سانتي متره) چې په سوډان، یوګندا او کینیا کې ژوند کوي.

پیګمیان په استوایي ځنګلونو کې استوګن دي. ونې یې ټیټې دي لوړوالی یې ۱۴۷ سانتي مترو پورې رسېږي.

بوشمن او هوتن ټیټې ونې لري او د کالاهاري د دښتې په شاوخوا کې ژوند کوي.

عربان او بربران د لویې صحرا په شمال کې استوګن دي. عربان غنم رنګه دي او تور ویښتان لري. د افریقا په شمال لویدیځ کې سپین پوستي بربر قبیلې ژوند کوي چې په نسل کې د

اسپانيې او ايټاليې له خلکو سره ورته والی لري. نو له همدې امله د الجزاير، تونس او مراکش هېوادونو، خلك د بربر د هېوادونو په نوم يادوي.
سپين پوستي اروپايي مهاجر، له استعمار څخه وروسته په افريقا کې تيت شول. د تمرکز اصلي ځاى يې په شمال لويديځ کې (المغرب) او په جنوب کې (جنوبي افريقا او زمبابوې) دي. همدارنگه په کينيا او زاير کې هم ژوند کوي، مهاجر آسيايان له اروپايانو څخه زيات دي. هنديان په جنوبي افريقا، کينيا او يوگندا کې استوگن دي. د مورشس د ټاپوگانو نفوس زياتره هنديان دي.د مادغاسکر زياتره نفوس مالاييان او پولينزيان دي.

## د امريکا د لوې وچې توکميزې ډلې:



د امريکا په لويه وچه د نژادونو د وېش نقشه

د امريکا زيات اوسېدونکي سپين پوستي يا گډ توکم څخه دي.د امريکا د لويې وچې اصلي اوسېدونکي سور پوستي دي چې په اصل کې د ژېړ توکمو برخه ده، چې د مذهبي عقيدې له مخې خپل مخ او وېښتان په نکريزو سره کوي. شمېر يې په شمالي امريکا کې ډېر محدود دی، خو په مکسيکو او السلوادور کې د نفوسو زياته برخه تشکيلوي د بوليويا، گواتيمالا، اکوادور، پيرو او پاراگوای د لوړو سيمو نيم نفوس سور پوستي دي. د امريکا په لويه وچه کې د سپين پوستو د زياتوالي لامل د نړۍ له بېلابېلو هېوادونو څخه امريکا ته د سپين پوستو مهاجرت گڼل کېږي ژېړ پوستي له چين او جاپان څخه دې لويې وچې ته مهاجرت کړی دی. تور توکم د غلامی

او غلامانــو د خرڅــلاو د رواجولــو پــه پايله کې امريکا ته لــه افريقا څخه راوړل شــوي دي. له پورتوريکو، کيوبا او دومنيکن پرته نور ټول ټاپوګان د تورپوســتيو د اســتوګنې سيمې ګڼل کېږي او د ونزويلا، ســورينام، فرانســوي ګيانا او پانامه کې تور پوســتي ژوند کوي.

دوه رګه او ګډ توکمونه د سپين پوستو او تور پوستو د ودونو په پايله کې (مولات Mollstes) او تور پوستو او سور پوستو تر منځ د واده په پايله کې زانبوس(Zanbus) د څلورنيمو پېړيو په اوږدو کې رامنځته شوي دي، زياتره دغه توکمونه د مرکزي او جنوبي امريکا په هېوادونوکې ژوند کوي. په اقيانوسيه کې زيات نفوس سپين پوستي اروپايي مهاجرين دي. يو لږ شمېر تور پوستي او ژېړ پوستي او دوه رګه توکمونه هم شته.

### د استراليا توکميزې ډلې:

د اروپايانو له مهاجرت څخه مخکې په استراليا کې ۵۰۰ تور پوستي قبيلې مېشتې وې چې د خلکو شمېر يې څه نا څه شپېته زرو تنو ته رسېده. د استراليا اروپايي کېدنه له (۱۸۳۰)م کال څخه وروسته د اروپايانو له مهاجرت سره پيل شوه. لومړني مهاجرين يې هغه محکومين وو چې د هېواد د پرېښودو په جزا محکوم شوي وو. اوس د دې لوېې وچې د دوه رګه نفوس اکثريت جوړوي. د هغې لامل دا و چې سپين پوستي ښځه حاضره نه وه چې دې ټاپوګانو ته مهاجرت وکړي، نو له همدې امله سپين پوستو نرانو له بومي ښځو سره ودونه وکړل او ګډ نفوس يې رامنځته کړ.

### په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او له لاندې پوښتنو څخه دې يوې ته د يو او بل په مشوره ځواب برابر کړي او د ډلو استازي دې خپلو ټولګيوالو ته واوروي.

۱ -د نقشې له مخې په نړۍ کې د سپين توکم د استوګنې ځای تثبيت کړی.

۲ - د نقشې له مخې په نړۍ کې د ژېړ توکم د استوګنې ځای تثبيت کړی.

۳-د نقشې له مخې د تور توکم د استوګنې ځای تثبیت کړئ.

۴-د ژېړ توکم د ظاهري بڼې خصوصیت ولیکئ.

۵-ګډ توکم څه ته وايي او دغه توکم د نړۍ په کومه لویه وچه کې زیات دی.



## پوښتنې:

لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ.

۱- د آسیا د لویې وچې اکثریت نفوس .........تشکیلوي.

۲- د اروپا اکثریت نفوس........توکم، د افریقا...........توکم تشکیلوي.

۳-د تور پوستو او سپین پوستو د واده کولو په پایله کې........... ګډ توکم را منځته شو.

لنډ ځواب ورکړئ:

۱-د اروپایي سپین توکم غنم رنګه برخه د نړۍ په کومو هېوادونو کې ژوند کوي.

۲-د افریقا د لویې وچې د توکمیزو ګروپونو نومونه واخلئ.

۳-د سور توکمو ځانګړتیاوې بیان کړئ.

۴-ګډ توکم څه ته وايي او دغه توکم زیاتره په کومه لویه وچه کې شتون لري؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

مهاجرین په کومو لویو وچو کې د نفوسو د زیاتوالي سبب شوي.

د دې مطلب په هکله مقاله ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروئ.

# شپږم څپرکی

## ۶-۱ د نړۍ د مهمو دینونو په هکله څه پوهېږئ؟




پاسنۍ نقشه په غور ولولئ او وواياست چې په نړۍ کې کوم دینونه زیات پېروان لري؟

دین د انسانانو د فرهنګ ډېر مهم عنصر دی. هر یو دین په یوه ټاکلي ځای کې منځته راغلی دی او وروسته نورو سیمو ته خپور شوی دی. دینونه معمولاً له سیاسي، نژادي، ژبني او اقتصادي سرحدونو څخه اوړي او د نفوذ ساحه یې له پورتنیو لاملونو څخه د هېڅ یو تابع نه ده، دینونه د پیروانو د عقیدې له مخې په لاندې برخو وېشل کېږي:

**۱. انیمزم** Animism **یا د طبیعي پدیدو د عقیدو پیروان**: انیمزم د انسانانو له لومړنیو دینونو څخه ګڼل کېږي، د دې دین پیروان وايي چې ټول شیان او جمادات روح لري. د دې دین پیروانو په تېرو وختونو او په تېره بیا له تاریخي دورې څخه مخکې، طبیعي په تېره بیا حیرانوونکي (خارق العاده) شیانو او پدیدو ته په خدايي خاصیت قایل و، لکه: برېښنا، تندر، روښنايي، طوفان، باران او داسې نور د ماورای طبیعت قدرت په صفت پېژندل. دغه دین اوس په قطبي، بیاباني او لېرې پرتو ځنګلي سیمو کې په تور پوستو او ژېړ پوستو خلکو کې لیدل کېږي.

**۲. د ارباب الانواع د عقیدې پېروان**: د دې عقیدې پېروانو باور درلوده چې هره حادثه او پدیده

جلا خدای لري. دغه دین د یونان له مدنیت څخه پیل شوی دی او د روم د مدنیت په وخت کې اعلی درجې ته ورسېده لکه د اورغورځوونکي (اتشفشان)خدای، د برېښنا او تندر خدای، د سمندرونو خدای، د ستورو خدای، د باران خدای او داسې نور.

**۳. د اسماني دينونو پيروان**: دغه دینونه زیاتره اخلاقي اړخ لري او د خدای(ج) عبادت ته یې پاملرنه کړې ده.

د هغې د لارښوونې له پاره یې بېلابېل پیغمبران نازل کړي، لکه: یهودیت، مسیحیت او اسلام چې تر ټولو کامل دین د اسلام مقدس دین دی.

د رخصتۍ ورځې هم په بېلابېلو دینونو کې توپیر لري چې په اقتصادي فعالیتونو او نورو کارونو اغېز لري. د بېلګې په ډول په اسلام کې د جمعې ورځ او په عیسویت کې د یکشنبې ورځ رخصتي وي. په اسلامي سیمو کې د معمارۍ ځانګړی سبک شتون لري او کورونه د حریم ټاکلي ځایونه لري. جوماتونه ګلدستې، رواقونه، منارونه او ګنبدې په اسلامي هېوادونو کې ځانګړی سبک لري چې په عیسویت کې دا ډول سبک نه لیدل کېږي.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ. هره ډله دې د نړۍ د دینونو په نقشه کي د انیمیزم، ارباب الانواع او آسماني دینونو د عقیدو د نفوذ ساحه، په نښه کړي او هره ډله دې راټول شوي معلومات خپلو ټولګیوالو ته وښيي.

## پوښتنې:

لنډ ځوابونه ورکړئ:

۱. د نړۍ دینونه په عمومي ډول په څو برخو وېشل شوي دي؟
۲. انیمیزم څه ډول مذهب دی؟
۳. ارباب الانواع له انیمیزم سره څه توپیر لري؟
٤. کاملترین دین کوم یو دی؟
٥. د ځانګړو فرهنګي سیمو په رامنځته کېدو کې د مذهب اغېزې واضح کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د نړۍ د مشهورو دینونو نومونه واخلئ.

# الف: د اسلام سپېڅلی دین

د نړۍ د اسلامي هېوادونو په هکله څه پوهېږئ؟




پورتنی نقشې ته ځير شئ او ووایاست چې زيات اسلامي هېوادونه د نړۍ په کومه لويه وچه کې پراته دی؟

د اسلام سپېڅلی دين د الهي وحدانيت او ټولنيز عدالت په بنسټ ولاړ دی چې د حضرت محمد(ص) په بعثت او د قرانکريم په نازلېدو سره په مکه مکرمه کې انسانانو ته وړاندې شو.

کله چې حضرت محمد(ص) له مکې معظمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ، له هغې څخه وروسته د اسلام مقدس دين په ډېره چټکۍ خپور شو او د ختيځ او لويديځ په افکارو يې زياتې او دايمي اغېزې وکړې. زياترو خلکو د قناعت او ښه والي له مخې اسلام ومانه او نور يې هم اسلام ته دعوت کړل نو ځکه په ډېره لږه موده کې په پراخه ساحه کې خپور شو.

اوس د نړۍ په ټولو هېوادونو کې اسلامي دعوت په يوه ډول يا بل ډول وجود لري.

نن ورځ مسلمانان د ځمکې په پراخه ساحه کې استوګن شوي دي. تقريباً د نړۍ د نفوسو پنځمه برخه مسلمانان دي. د آسيا لويه وچه د نړۍ د مسلمانانو د استوګنې لومړنۍ سيمه ده. د دې لويې وچې

اسلامي هېوادونه په منځني ختيځ، منځنۍ آسيا، جنوبي او جنوب ختيځمه آسيا کې پراته دي. د دې اسلامي هېوادونو د خاورې پراختيا ۱۵ ميليونه کيلومتره مربع او نفوس يې د آسيا د لويې وچې د نفوسو دريمه برخه ده. په آسيا کې د ۲۷ هېوادونو وګړي مسلمانان دي چې د ۱۸ هېوادونو رسمي دين اسلام دی.

د يادونې وړ ده چې د اسلام سپېڅلی دين د آسيا په جنوب ختيځ (اندونيزيا کې) د هند ګجراتي او ايراني سوداګرانو په ۱۳ پېړۍ کې له سوداګرۍ سره يوځای د اسلام دين هم خپور کړ، ترڅو چې د وخت حاکمانو هغه ومانه او د هغه د خپرولو له پاره يې هڅې وکړې. نن ورځ د دې سيمې زيات مسلمانان په اندونيزيا، ماليزيا، بروني او فيليپين کې استوګنه لري.

د افريقا لويه وچه د اسلام دويم مرکز ګڼل کېږي. د افريقا په لويه وچه کې د مسلمانانو د استوګنې سيمه د دې وچې په شمال کې پرته ده. دغه ناحيه د مديترانې د سمندرګي په جنوب کې د سوانا د تحت استوايي سيمې، په ختيځ کې د سره سمندرګي او په لوېديځ کې د اطلس تر سمندر پورې غزېدلې ده. په نورو افريقايي هېوادونو کې مسلمانان په مختلفو فيصديو استوګن دي.

د اروپا او امريکا په لويه وچه کې د پام وړ شمېر مسلمانان اوسېږي. د اروپا په لويه وچه کې په البانيې، بوسنې او هرزګونې او په امريکا کې سورينام په دواړو لويو وچو کې اسلامي سيمې ګڼل کېږي.

د ۲۰۰۰ ميلادي کال د احصايې له مخې په ۶۳ نورو هېوادونو کې هم له ۱-۳۸ سلنه پورې مسلمانان ژوند کوي. اوس په نړۍ کې داسې هېواد نه شته چې هلته مسلمانان نه وي د زياتو معلوماتو لپاره د دې لوست اړوند جدول ته مراجعه وکړئ.

د اسلامي نړۍ هېوادونه د اقتصاد او نفوسو له پلوه يو ډول نه دي خو په ځينو کارونو کې ګډې موخې لري. اسلامي زيات هېوادونه د طبيعي منابعو له مخې لکه: نفت، طبيعي ګاز، ډبروسکاره، مس، ربړ او داسې نورو له پلوه ډېر شتمن دي. د نړۍ ٦٥,٥ سلنه د نفتو زېرمې د فارس په خليج (په عرب خليج) کې پرتې دي. د همدغو سرچينو د شتون له مخې د نړۍ د استعمارګرانو د پام وړ ګرځېدلي دي. په همدې ډول زيات اسلامي هېوادونه د استعماري هېوادونو د لاس وهنې او د متخصصينو د نشتوالي له مخې له خپلو طبيعي منابعو څخه هم ګټه نه شي اخيستلی. په همدې دليل په ارزانه بيه د لومړنيو اومو توکو د سر چينو( منابعو) محصولات صادروي او په مقابل کې په لوړه بيه له پرمختللو هېوادونو څخه کالي واردوي. د اقتصاد له پلوه په شتمنو هېوادونو پورې تړلي دي.

لاندنۍ جدول د ۲۰۰۰ میلادي کال د احصایې له مخې ترتیب شوی دی

## اضافي معلومات

| ګڼه | د آسیا په لویه وچه کې | د مسلمانانو شمېر په سلنه | رسمي دین |
|---|---|---|---|
| ۱ | افغانستان | ۹۹/۶ | اسلام |
| ۲ | اردن | ۹۳،۵ | اسلام |
| ۳ | ازبکستان | ۷۶/۲ | - |
|  | اندونیزیا | ۷۶/۵ | - |
| ۴ | امارات | ۸۲/۷ | اسلام |
| ۵ | متحدعرب |  | اسلام |
|  | ایران | ۹۹/۲ | اسلام |
| ۶ | بحرین | ۸۲/۴ | اسلام |
| ۷ | برونی | ۶۴/۴ | اسلام |
|  | بنګله دیش | ۸۵/۸ | اسلام |
| ۸ | تاجکستان | ۷۸/۶ | - |
| ۹ | ترکمنستان | ۸۷/۲ | - |
| ۱۰ | ترکیه | ۹۷/۴ | - |
| ۱۱ | پاکستان | ۹۶ | اسلام |
| ۱۲ | سوریه | ۸۶/۲ | - |
|  | فلسطین | ۸۷/۷ | اسلام |
| ۱۳ | قزاقستان | ۴۲/۲ | - |
| ۱۴ | قرغزستان | ۶۰/۸ | - |
| ۱۵ | قطر | ۸۲/۷ | اسلام |
| ۱۶ | عربستان سعودي | ۹۴ | اسلام |
| ۱۷ | عراق | ۹۶ | اسلام |
|  | عمان | ۸۷/۴ | اسلام |
| ۱۸ | کویت | ۸۳ | اسلام |
| ۱۹ | لبنان | ۵۵/۳ | - |
| ۲۰ | مالدیو | ۱۰۰ | اسلام |
| ۲۱ | مالیزیا | ۶۰/۴۵ | اسلام |
| ۲۲ | یمن | ۹۸/۹ | اسلام |

| ګڼه | د افریقا د په لویه وچه کې | د مسلمانانو شمیرنه په سلنه | رسمی دین |
|---|---|---|---|
| ۱ | الجزایر | ۹۹،۷ | اسلام |
| ۲ | تانزانیا | ۳۵ |  |
| ۳ | تونس | ۹۸،۹ | اسلام |
|  | جیبوتي | ۹۴،۱ |  |
| ۴ | چاد | ۵۹ |  |
| ۵ | سنیګال | ۸۷،۶ |  |
| ۶ | سوډان | .۷۰/۳ |  |
| ۷ | سومالي | ۹۸/۳ | اسلام |
| ۸ | سیرالیون | ۴۵،۹ |  |
|  | ساحل عاج | ۳۸/۶ |  |
| ۹ | صحرا | ۱۰۰ | - |
| ۱۰ | کومورو | ۹۸ |  |
| ۱۱ | ګامبیا | ۸۶،۹ |  |
| ۱۲ | ګینه | ۶۷،۳ |  |
| ۱۳ | ګینه بساو | ۳۹،۹ | - |
|  | لیبیا | ۹۶،۱ | اسلام |
| ۱۴ | مالي | ۸۲ | اسلام |
| ۱۵ | مصر | ۸۴،۴ | اسلام |
| ۱۶ | المغرب | ۹۸،۳ | اسلام |
| ۱۷ | موریتاني | ۹۹،۱ | اسلام |
| ۱۸ | نیجیر | ۹۰/۷ |  |
|  | نیجریا | ۴۵/۹ |  |
| ۱۹ | ولتای علیا | ۴۸،۶ |  |
| ۲۰ | (بورګینافاسو) |  |  |
| ۲۱ | ارتیریا | ۵۰ |  |

| ګڼه | د اروپا لویه وچه | د مسلمانانو شمېرنه سلنه |
|---|---|---|
| ۱ | اذربایجان | ۸۴ |
| ۲ | البانی | ۳۸،۸ |
| ۳ | بسینیا و هرزګونیا | ۴۳ |
|  | **د امریکا د لویې وچې هېوادونه** |  |
| ۱ | سورینام | ۱۹/۶ |

په برما، سریلانکا او فیلیپین کې یو زیات شمېر مسلمانان ژوندکوي او د هند د نفوسو ۱۲ سلنه مسلمانان دي. د اسلامي نړۍ د کنفرانس غړي ۵۷ هېوادونه دي چې ۲۵ هېوادونه یې په آسیا ، ۲۷هېوادونه یې په افریقا ۳ هېواودونه یې اروپا او۲ هېوادونه یې په امریکا کې دي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو کې تنظیم شي او هره ډله دې د نړۍ په ټولو لویو وچو کې د اسلام د دین د خپرېدو د علتونو په هکله په خپلو منځو کې مباحثه وکړي او د ډلو استازي دې د بحث پایلې په ټولګي کې وړاندې کړي. ښوونکی دې د بحث پایلې له خپل معلومات سره یوځای کړي او زده کوونکو ته دې توضیحات ورکړي.



### پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱. د اسلام د دین بنسټ په څه شي ولاړ دی؟

۲. په حضرت محمد(ص) لومړنۍ وحې څه وخت او په کوم ځای کې نازله شوه؟

۳. ولې اسلامي هېوادونه د نړۍ د استعمارګرانو د پام وړ دي؟

سم ځواب په نښه کړئ:

۱. د آسیا د جنوب ختیځ په کوم هېواد کې د نړۍ ډېر زیات نفوس ژوند کوي؟

الف: مالیزیا ب:اندونېزیا ج:بنګله دېش د:افغانستان



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

له ورکړ شوي نقشې او د نړۍ د اسلامي هېوادونو د لست څخه په ګټې اخېستنې د اسلامي هېوادونو بې نومه نقشه کاپي او په هغې کې د اسلامي هېوادونو نومونه ولیکئ. او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې يې د لویو وچو په بېلوالي ټولګي کې وړاندې کړئ.



## ب -د مسيحيت د دين په اړه څه پوهېږئ؟




پورتنۍ نقشې ته وګورئ او ووایاست چې د عيسويت د دين د پيروانو د نفوذ سيمې د نړۍ په كومو لويو وچو كې پرتې دي؟

عيسويت د آسماني نړيوالو دينونو له جملې څخه دی چې زيات پيروان لري او د لومړۍ ميلادي پېړۍ په لومړيو كې څرګند شوی دی او د دويمې ميلادي پېړۍ په پای كې په ډېره چټكۍ يې پراختيا موندلې ده.

دغه دين لومړی د حضرت عيسی (ع) بن مريم په واسطه په فلسطين كې خلكو ته ور وپېژندل شو. څرنګه چې حضرت عيسی(ع) پلار نه درلوده، نو ځكه د عيسی (ع) بن مريم په نوم ياد شوی دی. پيروان يې د هغه د پيدايښت په هكله ډېرې نظريې لري. آن دا چې ځينې هغه د الوهيت په درجه كې هم ګوري. له همدې امله د نن ورځې عيسويت له توحيد څخه منحرف شوی او شركونو او زياتو خرافاتو په كې ځای نيولی دی، عيسويان په تثليث عقيده لري يعنې په درېو خدايانو باور لري: خدای، خدای زوی (عيسی بن مريم) او روح القدس.

حضرت عيسی(ع) د بني اسرائيلو په انبياوو كې وروستنی پېغمبر دی او د حضرت عيسی(ع) او حضرت محمد(ص) دپيدايښت ترمنځ بل پېغمبر نه دی رالېږل شوی. حضرت عيسی(ع) پخپل ژوند كې واده نه دی كړی او نه يې د استوګنې له پاره كور جوړ كړی دی.

د مسیحیت دین د لومړي کنستانتین په وخت کې له ۳۰۶ څخه تر ۳۳۷ میلادي کلونو پورې رسمي دین




او کلیسا د روم د امپراطور د حکومت د مستقیم نظارت لاندې و او قوانین یې له مسیحیت سره موافق کړل، د سان پیترو لومړنی کلیسا په اوسني واتیکان کې جوړه شوه.

د مسیحیت د دین د سترو څانګو په اره کې څه پوهېږئ؟

د عیسویت دین په ۲۵۰ مذهبي فرقو وېشل شوی دی چې له هغې جملې څخه یې درې لوېې برخې دا ډول دي:

۱. **کاتولیک**: د کُلي او عمومي په معنا دی. دغه اصطلاح د هغې پخوانۍ کلیسا په باره کې چې په نورو څانګو وېشل شوی نه وه او د رومي کاتولیک په نوم یادېده، استعمالېده. د کلیسا په راس کې پاپ و. په لاتینۍ ژبه کې د پاپ اصطلاح د پلار په معنا ده.

د روم اسقف[1] د دغې برترۍ له مخې په ټولې مسیحي نړۍ باندې د مستقیم او مرکزي کنترول مدعي شو. د کاتولیکانو له نظره پاپ له ټولو ګناهونو، تېروتنو او اشتباګانو څخه مصئون دی. د کلیسا کار کوونکي باید واده ونه کړي. دغه مذهب په لومړۍ درجه په ایتالیا، بلجیم، فرانسه، اسپانیه، پرتګال او په ځانګړې توګه په لاتیني قوم کې او په دویمه درجه د اتریش، پولینډ، مجارستان، چک، سلواک، کرواتي او سلواني (پخوانی یوګوسلاویا) او اقلیتونه یې د بریتانیا په اتحادیه او نورو اروپایي هېوادونو کې تر سترګو کېږي.

۲. **ارتودوکس**Orthodox: د کامل او صحیح په معنا دی. د روم امپراطوري په ۴۷۶ میلادي کال کې په دوو ختیځو او لویدېځو برخو ووېشل شوه. په همدې دلیل کلیسا هم د لویدیځ روم په کلیسا

۱- اسقف د کاتولیک کلیسا د مراتبو د سلسلې لوړ مقام دی.

(کاتولیک) او یوناني ختیځ روم (ارتودوکس) وویشل شوه. دلویدیځ روم کلیسا هڅه کوله چې خپل نفوذ په سلاویانو (بلغارستان) کې پراخه کړي. دغه عمل د ختیځ روم کلیسا ناراضه کړه.
په همدې ډول مسلمانانو د یرموک په جګړه کې د حضرت عمر(رض) د خلافت په دوره کې ۶۲۶ میلادي کال کې ختیځ روم ته ما ته ورکړه او د سوریې او فلسطین سیمې یې ازادې کړې. د امویانو د خلافت په دوره کې ترکیه هم د مسلمانانو په لاس کې ولوېده. د روم امپراطور دریم لیوي د اسلام د دین د نفوذ د مخنیوي لپاره ځیني مذهبي اصلاحات عملي کړل. په ۷۶۶ میلادي کال کې فرمان صادر شو چې د هغه له مخې د انځورونو او تمثالونو نصبول په کلیسا کې منع شول. دغه عمل یې یو ډول بت پرستي وګاڼه. دغه عمل په ختیځې او لویدیځې اروپا کې عکس العملونه رامنځته کړل. په ختیځ روم کې د نظامي قوې په زور عملي شول، خو د روم په ښار کې دریم پاپ ګری ګورس مذهبي شورا جوړه کړه او فتوا یې صادره کړه چې هر څوک چې په کلیسا کې تصویرونو او تمثال ته احترام نه کوي، د ایمان له دایرې څخه خارجېږي.
د دې دواړو مذهبي فرقو ترمنځ لوی اختلاف دا دی:
۱. ارتودوکس په قطعي ډول د دې اصل مخالف دي چې د روم پاپ د مسیحي کلیسا په ټولو ټولنو عمومي ریاست ولري.
۲. د روم پاپ معصوم نه دی، باید په ایماني او اخلاقي مسایلو کې تېروتنې ونه کړي. د ارتودوکس د کلیسا کارمندان په واده کولو کې خود مختار دي.
د روسیې، صربستان، رومانیه او یونان زیاتره خلک او په عمومي ډول په سلاویانو کې د ارتودوکس مذهب زیات پیروان شته.
۳. **پروتستانت**protestant: د اعتراض کوونکي په معنا دي.
کاتولیکي کلیسا چې زیاتره د شکوه او جلال پسې ګرځېده نو د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره یې د ګناهونو د بخښنې پاڼې او لوحې خرڅولې او روحاني مقام یې د پیسو په مقابل کې پلوره. آلمان کې مارتین لوتر روحاني چې (۱۴۸۳-۱۵۴۶ میلادي کال پورې ژوندی و، اعتراض وکړ. ده په ۱۵۱۷ میلادي کال د اکتوبر په ۳۱ اعتراضیه لیک چې ۹۵ مادې یې درلودې، ولیکه.په ۱۵۳۴ میلادی کال کې انجیل د لاتیني ژبې څخه چې مذهبي ژبه وه، په آلماني ژبه وژباړل شو او د انجیل لوستل اسانه شول. نو زیاتره خلک د لوتري کلیسا پلویان شول چې شرایط یې اسانه وو او ډېر لږ یې شعایرو او رسم و رواجونو ته پام کاوه دغه مذهب دلوتریسم په نوم هم یادېږي.
د پروتستانت څانګه په اروپا کې په جرمني قومونو کې زیات پیروان لري. د دغه مذهب پیروان په فنلنډ،

سویډن، ناروي، ډنمارک، انګلستان، هالند، المان، اتریش او د سویس، چک، سلواک د هېوادونو په یوه برخه کې او هم د اروپا په نورو هېوادونو کې ځینې کوچنی لږ کی ژوند کوي.

د جغرافیايي لویو اکتشافاتو څخه وروسته، په ۱٦میلادي پېړۍ کې چې اروپایانو لویې استعماري امپراتورۍ جوړې کړې، نو په ټوله نړۍ کې یې خپل دود او مذهب خپور کړ. اوس د اروپا په ټولو پخوانیو مستعمرو کې په بېلابېلو سلنو د دې دین پیروان شته د مثال په ډول د ټولو جنوبي او منځنۍ امریکا د هېوادونو مذهب کاتولیک او د شمالي امریکا د هېوادونو پروتستانت او کاتولیک دی. په همدې ډول په هغو افریقايي هېوادونو کې چې یو وخت د اروپا د استعمار لاندې وو، دغه مذهبونه شته. ښه مثال یې جنوبي افریقا، ایتوپي او د ګینې د خلیج ساحلي هېوادونه دي.

د آسیا او اوقیانوسیې د پخواني استعمار لاندې هېوادونو کې په مختلفو سلنو د دې مذهب پیروان شته دي. سره له دې هم عیسوي دین د جنوبي امریکا په دربوو هېوادونو کې لکه: ارجنټاین، بولیوي او پیرو په یو افریقايي هېواد لیسوتو او په دربوو اروپايي هېوادونو مالټ، ناروي او واتیکان کې د هېوادونو رسمي دین ګڼل کېږي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د نقشې له مخې په نړۍ کې د عیسویت د دین د خپرېدو د لاملونو په هکله پخپلو منځو کې بحث وکړي او د کار نتیجه دې د ډلې استازی خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. د عیسویت دین ولې په دې نوم یادېږي؟

۲. د بني اسرا ئیلو په نبیانو کې وروستنی نبي څوک و؟

۳. د حضرت مسیح(ع) د زېږېدنې په هکله خپل معلومات وړاندې کړئ.

٤. د عیسویت د دین مهمې څانګې کومې دي؟

٥. د کاتولیکي او ارتودوکس د کلیساوو ترمنځ توپیر څه دی، واضح یې کړئ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د اروپا له لوېې وچې څخه د باندې د عیسویت د دین د خپرېدو په هکله تبصره وکړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

## ج -د تائوییزم taoism او شینتوییزم shIntoism دینونو په هکله څه پوهېږئ؟

د نړۍ د ادیانو نقشه په ۱۲۳ مخ کې ولولئ او د تائوییزم او شینتوییزم د دین ساحه په کې په نښه کړئ.

تائو په چینې ژبه کې د لارې او طریقې په معنا دی دغه مکتب د چین لوی فیلسوف لاوو تزو او یا لاووتان پورې اړه لري. یو افسانوي سړی چې د څېړني او مطالعې خاوند و، د هغه د ژوندانه په هکله کوم معلومات په لاس کې نه شته. آن دا چې د موجودیت حقیقت یې هم تر پوښتنې لاندې دی. داسې روایات شته چې دغه شخصیت د چو په ایالت کې له میلاد څخه مخکې په ۶۰۴ کال کې نړۍ ته راغی او ځینې د هغه د زیږیدلو نېټه له میلاد څخه مخکې ۵۰۷ کال بولي.

د تائوییزم فلسفه د کنفسیوس له عصر څخه په چین کې مخکې ده.د چین قوم او ملت په دغې عقیدې ولاړ دی. د تائوییزم دین په ۱۶۵ میلادي کال کې د هوان له خوا د هان د لړۍ خاقان په واسطه رسمي شو او د هغه په نوم یې معبد جوړ کړ، خو دومره زیات پرمختګ یې ونه کړ. د تانګ د لړۍ بنسټ ایښودونکي په ۶۱۸ میلادي کال کې په هغه ایمان راووړ. له دې څخه وروسته تائوییزم په سازماني بڼه رسمي دین شو.

- شینتوییزم په لغت کې د خدایانو د لارې په معنا دی او د جاپان د خلکو دین دی.

د دې دین له مخې زیات شمېر خدایان شته چې امپراطور هم د خدایانو له ډلې څخه شمېرل کېږي.

دغه آیین د جاپان له میلاد څخه په مخکې تاریخ پورې اړه لري.

جاپانیان باور لري چې له جاپانیانو څخه پرته نور باید په دې هېواد کې ژوند ونه کړي او چاپانیان هم باید په بل ځای کې مړه نه شي. جاپانیان خپله سیمه الهي هېواد بولي او نور هېوادونه د دې ځانګړتیاوو لرونکی نه ګڼي.

د شینتوییزم دین د جاپانیانو ډېر پخواني دین دی چې وروسته یې د کنفسیوس او بودایي دینونو د اغېزو لاندې تحول وکړ. اوسنی بڼه یې اداب، عنعنات، د مقدسو ځایو زیارت، جشنونه او عمومي اخترونه دي. دغه مسئلې په مذهبي اړخ غلبه لري. د دې دین پیروان په جاپان او د ختیځې آسیا په زیاترو هېوادونو کې ژوند کوي



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په دوه نفري ډلو ووېشل شي او د تائوییزم او شنتوییزم د دینونو د فلسفې په عمده ټکو دې په خپلو منځو کې مباحثه وکړي او د بحث پایلې دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې:

۱. د تائوییزم د دین معنا څه ده او دغه دین په کوم هېواد کې رامنځته شو؟
۲. د تائوییزم دین پیروان په کومو هېوادونو کې استوګنه لري؟
۳. د شنتوییزم د دین معنا څه ده او دغه دین په کومو هېوادونو کې زیات پیروان لري؟
۴. د شنتوییزم د دین له مخې د جاپانیانو نظر د خپل هېواد په باره کې بیان کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د تائوییزم او شنتوییزم د دینونو په هکله خپل نظر په څو کرښو کې ولیکئ.

## د- د بودايي او هندوييزم د دينونو په هکله څه پوهېږئ؟

په (۱۲۳ او ۱۲۹) مخ کې د نړۍ د مذهبونو نقشه په غور ولولئ او ووایاست چې بودايي دين د نړۍ کومو هېوادونو ته پراختيا موندلې ده؟

بودايي Buddha دين له ميلاد څخه پنځه پېړۍ مخکې رامنځته شو. د هغه موسس د سيدارتا په نوم يو شهزاده و چې په (۳۰) کلنۍ عمر کې يې په دې لار کې برياليتوب تر لاسه کړ او د گوتاما لقب ورته ورکړ شو. څرنگه چې پوهې او حقيقت ته ورسېده نو بودا عاقل او فيلسوف ونومول شو.

بودا باور درلود چې انسان بايد خپل نفساني تمايلات، شهوت او غضب وپېژني او هغه کنټرول کړي. بودايي دين ډېر پلويان او کتابونه لري چې له ټولو څخه يې زيات مقدس تري پتيکا( درې ټوکرۍ گل) دی. نن ورځ ددې دين ډېر پېروان په هند، جاپان، چين، مغولستان، تبت، برما،کامبوج، تايلېند بوتان او د نړۍ په نورو سيمو کې ژوند کوي. مقدس ښارونه يې په هند کې بنارس او په تبت کې لهاسا دي. دغه دين د کامبوج، بوتان او تايلېنډ په هېوادونو کې رسميت لري. د يادونې وړ ده چې د بودا مجسمه لومړی په گندهارا (د جلال آباد په هډه کې) د کنشکا د حکومت په وخت کې په افغانستان کې جوړه شوې وه. وروسته په باميانو کې لويې مجسمې په غره کې و توږل شوې او د بوديزم د زيارت کوونکو ډېر ستر ځای گڼل کېده. د دې دين له سترو فرقو څخه لامائييزم دی. لاماييزم د بوديزم ځانگړې بڼه گڼل کېږي او زيات قلمرو يې په تبت کې دی چې د کار واک يې د روحاني رئيس په لاس کې دی چې لاما نومېږي.

هندوييزم Hinduism يو ټولنيز مذهبي سيستم دی چې په هندوستان کې د ۱۵۰۰ ق. م. کالو په شاوخوا کې يې رواج درلوده. نن ورځ د هند زياتره خلک د دې دين پيروان دي.

د دې دين ځانگړتيا د روح تناسخ دی. د هندوانو په باور هر انسان په نړۍ کې د خپلو نيکو او بدو عملونو مسؤول دی. د هغوی په باور که چېرې انسان خپل ژوند په سمه توگه سر ته ورسوي، نو روح يې د ښه سړي جسم ته او که بدکاره اوسي نو روح يې د مجازاتو له پاره د بد سړي جسم ته، آن دا چې حيواناتو ته انتقالېږي او تر هغه وخته دې کار ته دوام ورکوي چې انسان نيک کارونه سرته ورسوي.

هندوان بايد طبقاتي قوانين مراعات کړي او داسې باور ولري چې د هغو په رعايت سره بيا په دې نړۍ کې زېږي او د هوسا ژوند خاوندان به شي. د هندوانو دين درې خدايان لري برهما(د موجوداتو خالق)، وېشنو(د موجوداتو د ساتنې خدای)او شيوا(د موجوداتو د له منځه وړلو خدای) د دې دين مقدس کتاب ويدا (د برهمنيانو ودا Vda)نوم لري. دغه کتاب د هند د اريايانو له پاره هم سپيځلی دی چې د سانسکريت په ژبه ليکل شوی دی. د هند د دې پخواني دين اصول، مذهبي سرودونه او دستوورونه گڼل کېږي چې لرغونتوب يې له ميلاد څخه ۷ پېړۍ مخکې دی.

هندوييزم په کاست مذهبي طبقاتو باور لري چې نومورې طبقات له برهمنانو، وېشيا، کشتريا او شودرا دي چې د هرې طبقې مقام په ټولنه کې ټاکل شوی دی د پام وړ نقطه دا ده چې د نړۍ ټول لوی دينونه د آسيا په لويه وچه کې څرگند شوي دي او د نړۍ نورو سيمو ته خپاره شوي دي. هر دين په بېلابېلو فرقو وېشل شوی دی.



# په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د بودیزم او هندوییزم د دینونو په عمده ټکو بحث وکړي او د ډلې استازی دې د فعالیت نتیجه خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي. ښوونکی دې موضوع را ټوله او د خپلو معلوماتو سره دې ټولګي ته وړاندې کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱.د بودیزم د دین بنسټ ایښودونکی څوک و، چېرې رامنځته شو او مقدس کتاب یې څه نومېږي؟

۲.د بودیزم دین د نړۍ په کومو هېوادونو کې پیروان لري؟

۳.د هندویزم په دین کې د روح تناسخ په کومه معنا کارول کېږي؟

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱. د هندویزم مقدس کتاب ........... په نوم یادېږي.

۲. د بودایانو مقدس کتاب د........... په نوم یادېږي.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

ګرانو زده کوونکو! د بودیزم او هندویزم دینونو په سیاسي فلسفي مسألو خپله تبصره ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.

### اضافي معلومات

| ګڼه | هېوادونه | هندواییزم | بودییزم | تائواییزم | شنتواییزم | ګڼه | هېوادونه | هندواییزم | بودییزم | تائواییزم | شنتواییزم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | اندونیزیا | ٪ ۳/۴ | | | | ۱۰ | فیجی | ٪ ۳۳/۳ | | | |
| ۲ | انګلیستان | ٪ ۱ | | | | ۱۱ | شمالی کوریا | | ٪ ۲۲/۸ | | |
| ۳ | بنګله دیش | ٪ ۱۲/۴ | ٪ ۰/۶ | | | ۱۲ | مالیزیا | | ٪ ۱۹/۲ | | |
| ۴ | بوتان | ٪ ۲۰/۵ | ٪ ۷۴ | | | ۱۳ | میانمار | | ٪ ۷۲/۷ | | |
| ۵ | تایوان | | ٪ ۴۳/۴ | ٪ ۳۴/۵ | | ۱۴ | موریس | ٪ ۴۹/۶ | | | |
| ۶ | پاکستان | ٪ ۱/۲ | | | | ۱۵ | نیپال | ٪ ۸۰/۶ | | | |
| ۷ | جاپان | | | | ٪ ۸۴/۲ | ۱۶ | ویتنام | | ٪ ۴۹/۲ | | |
| ۸ | چین | | ٪ ۸/۵ | ٪ ۲۰/۱ | | ۱۷ | هند | ٪ ۸۱/۳ | ٪ ۹/۱ | | |
| ۹ | سنګاپور | ٪ ۴۲/۴ | | | | | | | | | |

# ۶–۰۲ د نړۍ مهمې ژبې

آیا د نړۍ مهمې ژبې پېژنئ؟




پورتنۍ نقشه په غور سره مطالعه کړئ. د دې نقشې مختلف رنګونه د نړۍ د بېلابېلو ژبو ښکارندويي کوي.

ژبه د صوتي سمبولونو قراردادي کسبېدونکی سیستم دی چې انسان يې په وسيله خپلې تجربې تبادله کوي او راتلونکو نسلونو ته يې لېږدوي.

ژبه د پوهولو او را پوهولو (افهام او تفهيم) وسيله او د علايمو سيستم دی چې د پوهې د انتقال او حاصلولو، معاشرې او د خلکو د تفاهم له پاره کارول کېږي. ژبه د انسانانو د کار او فعاليت په بهير کې منځته راغلې او په تدريجي ډول يې تکامل کړی. خبرې کول انسان ته د دې توان ورکوي چې خپلې تجربې وساتي او راتلونکي نسل ته يې ولېږدوي.

د دنيا هغه ژبې چې يوه ريښه ولري، د ژبو د کورنۍ په نوم يادېږي. د نړۍ د ژبو کورنۍ په

لاندې ډول دي:

**الف**: **اندو اروپايي ژبې**: دا ژبو د ډلو ډېره پراخه ډله ده چې د اندو اروپايي په بېلابېلو څانگو لکه: لاتين، بالتيک، سلاويک، جرمانيک، اريک او ارمني وېشل شوې ده.

**ب**: دنيگرو ژبه کې لاندې دوه ژبې شاملې دي:

**۱**-د سوډان په جنوب، د چاد په جمهوريت، نايجريا او د افريقا په استوايي هېوادنو کې خلک په دې ژبې خبرې کوي.

**۲**-: **د بانتو ژبه**: د کانگو، زمبيا او انگولا د حوزې خلک پرې خبرې کوي.

**ج**: **حامي او سامي ژبه**:

• **سامي ژبه**: د عربستان په ټاپو وزمه، د مصر په عربي جمهوريت، ليبيا، الجزاير، مالي او په مراکش کې مروجه ده.

• **حامي ژبه**: په حبشه، الجزاير، نايجر او د سنيگال په يوه برخه کې خلک پرې خبري کوي.

په التايي او اورالي ژبو کې لاندې پنځه ژبې شاملې دي:

**۱**- د فن ژبه: د الپ، فنلنډ، اويستاک او د اروپايي روسيې شمالي خلک پرې خبرې کوي.

**۲**- **ترکي**: په ترکيه، ترکمنستان، ازبکستان، قزاقستان، قرغزستان، چين او افغانستان کې پرې خبرې کوي.

**۳**- **منگوليايي**: په منگوليا (مغلستان) او د چين په شمال کې خلک پرې خبرې کوي.

**۴**- **د توگوس ژبه**: د سايبريا په شمال کې په تېره بيا د تايگا او تندرا سيمو کې مروجه ده.

**۵**- **جاپاني او کوريايي ژبه**: د جاپان په ټاپوگانو او د کوريا په ټاپو وزمه کې خلک پرې خبرې کوي.

## نورې ژبې:

**۱**- مالیزیایي او پولنزیایي ژبه: مالیزیایي او پولنزیایي ژبه د جاوا، سوماترا په ټاپوګانو، د کمبودیا په یوه برخه او د بورنیو په ټاپوګانو کې رواج لري.

**۲**- د امریکا اصلي او بومي ژبه د امازون په حوزه کې مروجه ده.

**۳**- د دراویدن ژبه: د هند په جنوب کې او د سریلانکا په یوه برخه کې رواج لري.

**۴**- چیني ژبه د یوې کتلې په توګه د چین په هېواد کې رواج لري.

آیا پوهیږئ چې د نړۍ زیات خلک په کومو ژبو خبرې کوي؟

• مخامخ جدول په غور ولولئ

•ماندرمن (چینایي) ژبه د ختیځې آسیا له ډېرو معروفو ژبو څخه ده. د نړۍ پنځمه برخه خلک یا تقریباً ۸۵۳ میلیونه چینایي او په مجموع کې په نړۍ کې ۱۲۱۳ میلیونه تنه په دې ژبه خبرې کوي.

• انګلیسي ژبه چې د اندو اروپایي ژبو یوه څانګه ده، میلیونونه انسانان پرې خبرې کوي او د نړۍ په ۵۰ هېوادونو کې رسمي ژبه ده.

•عربي ژبه چې د سامي ژبو له کورنۍ څخه ده، د نړۍ له ۲۲ هېوادونو څخه په زیاتو هېوادونو کې رسمي ژبه ده او خبرې پرې کېږي. د یادونې وړ ده چې د ژبې پراختیا له سیاسي حدودو سره مطابقت نه لري. ښایي په یوه هېواد کې څو ژبې وي. څو د یوه هېواد ټول هغه خلک چې د هغه هېواد په سیاسي حدودو کې ژوند کوي، خپل ځان په

### اضافي معلومات

د نړۍ مهمې ژبې چې زیات ویونکي لري.(شمیر یې په میلیون تنو)

| ژبه | مورنۍ ژبه | د ژبې ټول ویونکي |
|---|---|---|
| ماندرین چینایي | ۸۵۳ | ۱۲۱۳ |
| هندي | ۳۴۸ | ۴۵۴ |
| اسپانوي | ۳۴۶ | ۴۰۱ |
| انګلیسي | ۳۳۰ | ۴۸۷ |
| بنګالي | ۱۹۷ | ۲۰۴ |
| عربي | ۱۹۵ | ۲۳۰ |
| پرتګالي | ۱۷۳ | ۱۸۶ |
| روسي | ۱۶۸ | ۲۸۰ |
| جاپاني | ۱۲۵ | ۱۲۶ |
| آلمان | ۹۸ | ۱۲۴ |
| فرانسوي | ۷۴ | ۱۲۶ |
| مالای اندونیزیایی | ۵۴ | ۱۶۴ |
| ایتالوي | – | ۶۲ |
| اردو | – | ۶۱ |

يوه واحد پورې تړي او په هغې افتخار کوي. لکه افغانستان. په دې هېواد کې له ۳۰ څخه زياتې ژبې او لهجې شته خو ټول په دوو رسمي ژبو پښتو او دري ليکل او لوستل کوي او په هغوسيمو کې چې زياتره خلک يې په اوزبکي، ترکمني، بلوچي، پشه يي، نورستاني او پاميري ژبو خبرې کوي، د پښتو او دري سر بېره، په هغه سيمه کې دريمه رسمي ژبه ده.

• سر بېره پر دې نړۍ کې داسي هېوادونه هم شته چې بېل سياسي حدود لري خو په يوه ژبه خبرې کوي لکه: عربي ژبه چې په عربستان، سوريه، عراق، مصر، ليبيا کې مروجه او رسمي ژبه ده.



## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او د نقشي له مخې دې د نړۍ د لويو ژبو سيمې وټاکي. د ډلي استازي دې لاس ته راغلي معلومات خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي. ښوونکی دی وړاندې شوي مطالب له خپلو معلوماتو سره په مناسب ډول راټول کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب وليکئ

۱- ژبه تعريف کړئ

۲- سامي او حامي ژبې د نړۍ په کومو هېوادونو کې رواج لري؟

۳- د پنځو هغو لويو ژبو نومونه واخلئ چې زيات شمېر خلک پرې خبرې کوي؟

٤- ولې په نړۍ کې چينايي ژبه زيات ويونکي لري؟

۵- په اندو اروپايي ژبو کې کومې ژبې شاملې دي؟

٦- التايي او اورالي ژبې په کومو څانګو وېشل شوي دي؟



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

زده کوونکي دې د ژبې د اهميت په باره کې څو کرښې وليکي او د جغرافيې په بل ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

# الف-عربي ژبه

ستاسې په نظر عربي ژبه د نړۍ په کومو هېوادونو کې رسمي ژبه ده؟




په (۱۳۷) مخ کې د نړۍ د ژبو نقشه ولولئ د حامي ژبې د نفوذ ساحه له سامي څخه بېله کړئ.

دا خبره څرګنده ده چې د هېوادونو او ملتونو تر منځ اړیکې د ژبې د پراختیا او د اړیکو نه شتون د ژبې بېلوالی او محدودیت منځته راوړي. لکه: عربي ژبه چې د اسلام د مقدس دین د خپرېدو او نفوذ له مخې په ټوله نړۍ کې خپره شوې ده.

عربي ژبه د نړۍ د مسلمانانو د مقدس کتاب قرآن کریم ژبه ده. نو له همدې امله ځانګړې ارزښت لري.

سره له دې چې قرآنکریم په ډېرو ژبو ژباړل شوی دی، خو د نړۍ ټول مسلمانان هغه په اصلي ژبه یعنې

عربي تلاوت او زده کوي. نو له همدې امله ټولو مسلمانانو ته په کار ده چې د قرآنکريم او نبوي احاديثو د تلاوت او د الهي احکامو څخه د ګټې اخيستنې له پاره د عربي ژبې قاعدې زده کړي.

هغه وخت د عربي ژبې زده کړې د قواعدو تدوين او وضع کولو ته اړتيا پيښه شوه چې د اسلام دين غير عربي هېوادونو او قومونو ته ورسېده او هغه هېوادونه او قومونه د عربي ژبې حوزې ته ورننوتل او په دوامداره ډول يو بل ته نژدې شول. لړ لړ يې د عربي په زده کړه پيل وکړ، خبرې او ليکل يې پرې کول. د د غو قواعدو ترتيب کولو دوه موخې لرل.

۱- په قرآن، نبوي احاديثو او نورو شرعي حکمونو باندي د آسانه پوهېدلو له پاره.

۲- د نورو ژبو له تصرف څخه د عربي ژبې ساتنه.

په دې ډول عربي ژبه د اسلامي نړۍ په زياتو سيمو کې د محلي ژبو ځای ونيوه آن دا چې په منځنيو ميلادي پېړيو کې علمي او ادبي کتابونه چې د هغه مهال پوهانو ليکل او راټولول، زياتره په عربي ژبه وو. نو له همدې امله عربي ژبه د خپل عصر علمي او نړيواله ژبه ګڼل کېده چې له نيکه مرغه اوس هم د نړيوالو ژبو په کتار کې شامله ژبه ده.

عربي ژبه د آسيا او افريقا په لويو وچو سربېره د مسلمانانو د نفوذ په پايله کې د اروپا په جنوب کې تر پرتګال هم ورسيده. تر اوسه د عربي ژبې اصطلاحات د ادبي، نظامي، تجارتي، بيړۍ چلونې، ستور پوهې او د کيميا، رياضي، بيالوژي، طب او درمل جوړولو په علمونو کې کارول کېږي. دغه اصطلاحات زياتره په فرانسوي، ايټالوي او اسپانوي ژبو کې رواج شوی دي.

د نړۍ له ۲۲ هېوادونو څخه چې رسمي ژبه يې عربي ده، لس هېوادونه په افريقا او ۱۲ هېوادونه يې په آسيا کې پراته دي.

## اضافي معلومات:

د نړۍ هغه هېوادونه چې رسمي ژبه يې عربي ده، دا دي.

| افريقايي هېوادونه چې رسمي ژبه يې عربي ده: | آسيايي هېوادونه چې رسمي ژبه يې عربي ده: |
|---|---|
| ۱ـ الجزاير | ۱ـ اردن |
| ۲ـ تونس | ۲ـ متحده عربی امارات |
| ۳ـ جيبوتي (عربي او فرانسوی) | ۳ـ سوريه |
| ۴ـ چاد عربي او فرانسوی | ۴ـ عراق |
| ۵ـ سودان | ۵ـ سعودی عربستان |
| ۶ـ سومالي | ۶ـ عمان |
| ۷ـ کومورو | ۷ـ فلسطين |
| ۸ـ ليبيا | ۸ـ قطر |
| ۹ـ مصر | ۹ـ کويت |
| ۱۰ـ مراکش | ۱۰ـ لبنان |
| | ۱۱ـ يمن |
| | ۱۲ـ بحرين |



## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په لاندې موضوعګانو په خپلو منځو کې بحث وکړي او پايلې دې د ډلو استازي خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

- هغه هېوادونه چې رسمي ژبه يې عربي ده، لست کړئ.
- ولې د اروپا په لويه وچه کې تر اوسه دعربي ژبې لغات او اصطلاحات په کيميا، رياضي، بيالوژي، طب او داسې نورو برخو کې استعمالېږي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱- ولې عربي ژبه په زیاترو هېوادونو کې خپره شوې ده؟

۲- عربي ژبه د آسیا او افریقا په څو هېوادونو کې رسمي ژبه ده؟

۳- د عربي ژبې ریښه معرفي کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

ولې د عربي ژبې زده کړه د نړۍ د ټولو مسلمانانو له پاره اړینه ده؟
تر دې سرلیک لاندې مضمون ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# ب– انګلیسي ژبه




ولې دنړۍ زياتره خلک د انګليسي ژبې له زده کړې سره مينه لري؟

پورتنۍ جدول په غور ولولئ او وواياست چې انګليسي ژبه د اندو اروپايي ژبو له کومې ډلې څخه ده؟

د انګلو ساکسون د استعمار له دورې څخه د فرانسې د نور ماندي خلکو ترفتحې پورې يعنې له ۵۰۰

څخه تر ۱۰٦٦ میلادي کال پورې په انګلینډ کې ډېره پخوانۍ مروجه ژبه انګلیسي وه. دغه سوچه توتیاني ژبه ډېره مشکله او له څو لهجو څخه مرکبه وه د نور ماندیانو په واسطه د انګلینډ له فتحې څخه وروسته فرانسوي ژبه هم مروجه شوه او تر ۱۲۵۰ میلادي کا ل پورې خلکو په انګلیسي او فرانسوي ژبه په انګلینډ کې خبرې کولې.

وروسته د دې دوو ژبو له یوځای کېدو څخه یوه بله ژبه د سوچه انګلیسي ژبې په نوم منځته راغله. نو له همدې امله انګلیسي ژبه له توتانيTeutonie (پخوانۍ انګلیسي)، لاتیني او فرانسوي ژبې (نورماندي) څخه مرکبه ده. بیا هم انګلیسي ژبه د عمومي خصوصیاتو او د صرف او نحوې د جوړښت له مخې په بشپړ ډول توتاني شمېرل کېږي.

خو هغه لوی تغیر چې په انګلیسي ژبه کې را منځته شو یو په بل پسې د بهرنیو کلماتو داخلېدل وو چې د معاصرو علومو د پرمختګ او د عمومي افکارو په پراختیا پورې اړه لري. یو زیات شمېر کلمې په دې ژبې ورزیاتې شوې چې ډېرې یې یوناني، فرانسوي او ځینې یې عبراني او لاتیني دي.

انګلستان په ۱۹ پېړۍ کې یوه پراخه مستعمراتي امپراطوري جوړه کړه چې لمر په کې نه پرېوته. په هغو مستعمرو کې د اقتصادي منابعو د ښکېلاک سربېره د خپل دود په خپرېدو یې هم پیل وکړ چې عمده برخه یې انګلیسي ژبه او مذهب دی. هغه خلک چې مورنۍ ژبه یې انګلیسي ده، په نړۍ کې یې شمېر ۳۳۰ میلیونو ته رسېږي. د نړۍ د ۱۵۷ میلیونو نور نفوسو لپاره دویمه ارتباطي ژبه ده. همدا رنګه انګلیسي د بریتانې په پخوانیو ٤۹ مستعمره هېوادونو کې چې اوس یې خپلواکي هم اخیستې ده او د هېواد اصلي ژبې یې ډېر انکشاف نه دی کړی، انګلیسي ژبه د لومړنۍ رسمي ژبې او په ځینو هېوادونو کې د دویمې رسمي ژبې په توګه منل شوې ده.

د انګلیسي ژبې زده کړه د یوې نړیوالې ژبې په توګه د نړیوال تفاهم سربېره په جغرافیه او نورو علمو کې د معلوماتي معتبرو مأخذونو په توګه په انټرنېټ، کتابونو او مجلو کې له انګلیسي څخه ګټه اخلي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي او د انګلیسي ژبې د پرمختیا په لاملونو دې په خپلو منځو کې بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې د خپل بحث نتیجه خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي. ښوونکی دې د ډلو بحث له خپلو معلوماتو سره راټول کړي او ټولګي ته دې توضیح کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

١- انګلیسي ژبه ولې د نړۍ په ٤٩ هېوادونو کې د رسمي ژبې په توګه منل شوې ده؟

٢- انګلیسي ژبه له کومو پخوانیو ژبو څخه جوړه شوې ده؟

٣- ولې زیاتره ځوانان غواړي انګلیسي ژبه یاده کړي؟

٤- د نړۍ ټولو لویو وچو ته د انګلیسي ژبې د خپرېدو لامل توضیح کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د انګلیسي ژبې د زده کړې د اړتیا په هکله څو کرښې ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# اضافي معلومات

هغه هېوادونه چې انګلیسي ژبه په کې د رسمي ژبې په توګه منل شوې ده (له انګلستان پرته په ٤٩ هېوادونو کې رسمي ژبه ده)

| د امریکا په لویه وچه کې | د افریقا په لویه وچه کې | د اروپا په لویه وچه | په اوقیانوسیه کې | د اسیا په لویه وچه کې |
|---|---|---|---|---|
| ۱- انتیګوا او باربودا | ۱- اوګاندا | ۱- انګلستان | ۱- استرالیا | ۱- سینګاپور |
| ۲- د امریکا متحده ایالتونه | ۲- بوتسوانا | ۲- ایرلنډ | ۲- تونګا | |
| ۳- بهاما | ۳- تانزانیا | ۳- مالتا | ۳- تو والو | |
| ٤- باربادوس | ٤- زیمبابوې | | ٤- ساموا | |
| ٥- بلیز | ٥- نامیبیا | | دسلیمان ټاپوګان | |
| ٦- ترینیداد او توباګو | ٦- سویزرلینډ | | ٦- فیجي | |
| ۷- جامیکا | ۷- سرالیون | | ٦- کریپاتي | |
| ۸- دومنیکا | ۸- سیشل | | ۸- مارشال | |
| ۹- سنت کیتس او نویس | ۹- ګانا | | ۹- میکونزي | |
| ۱۰- سنټ لوسیا | ۱۰- کامرون | | ۱۰- نائورو | |
| ۱۱- سنټ وینسنت او ګرنادین | ۱۱- کینیا | | ۱۱- وانو آتو | |
| ۱۲- کاناډا | ۱۲- ګامبیا | | ۱۲- پاپواګینې | |
| ۱۳- ګریناډا | ۱۳- لیستو | | ۱۳- پالائو | |
| ۱٤- ګویان | ۱٤- لایبریا | | | |
| | ۱٥- مالاوي | | | |
| | ۱٦- موریس | | | |
| | ۱۷- نایجریا | | | |
| | ۱۸- زامبیا | | | |
| | ۱۹- جنوبي افریقا | | | |

## ج-لاتيني ژبه (فرانسوي، اسپانوي او پرتګالي)




د ۱۳۷ مخ نقشه او پورتنی جدول ولولئ او ووایاست چې د لاتيني ژبې څخه کومې ژبې منځته راغلې دي.

رومي ژبه د ایټالیایانو پخوانی ژبه د اندو اروپايي ژبو د کورنۍ له ډلې څخه ده چې د پخواني روم د امپراتورۍ لاندې سیمو کې پرې خبرې کېدلې. په لویدیځه اروپا کې یې ورو ورو تغير وکړ او په محلي لهجو تبدیله شوه لکه: د اسپانيې، پرتګالي او فرانسې او په ختيځ کې د ارومانيې او البانيې د خلکو ژبې د بېلګې په توګه یادولی شو. د رومیانو پخواني آثار له میلاد څخه مخکې په شپږمې پېړۍ پورې اړه لري، خو د لاتين ادبيات په درېمې پېړۍ کې پېل شول. فرانسوي، اسپانوي او پرتګالي ژبې د ژوندیو ژبو له ډلې څخه دي چې د استعمار

او نورو لاملونو له مخې د ژبې د اصلي ويونکو له حوزې څخه د باندې يې رواج ومونده او پراخ ګرامر لري. اسپانيه، پرتګال او فرانسه هغه هېوادونه دي چې د جغرافيايي اکتشافاتو وروسته يې وکولی شول چې په امريکا، افريقا، آسيا او اوقيانوسيه کې لوېې مستعمرې لاس ته راوړي په هغو سيمو کې يې خپل کلتور او دود هم مروج کړ چې د دغه کلتوري نفوذ يوه مهمه برخه ژبه ګڼل کېږي.

د اروپا د استعمار لاندې هېوادونو کې د څو پېړيو ولکو په پای کې د مستعمره شوو هېوادونو محلي او سيمه ييزو ژبو وده ونه کړه. سره له دې چې خپلواک هېوادونه هم دي، خو د پخوانيو استعماري ژبو د نفوذ له مخې يې خارجي استعماري ژبه د خپل هېواد د رسمي ژبې په توګه منلې ده. لکه: فرانسوي ژبه د نړۍ په ۲۶ هېوادونو کې، اسپانوي ژبه د نړۍ په ۱۹ هېوادونو کې او پرتګالي ژبه دنړۍ په ٦ هېوادونو کې رسمي او لومړنۍ ژبه او په ځينو هېوادونو کې دويمه رسمي ژبه ده.

د زياتو معلوماتو له پاره هغه جدول چې ضميمه دی، ولولئ.

د لاتیني ژبې ځانګې چې د ژبې د اصلي ټاټوبي ځخه بهر په نورو هېوادونو کې د رسمي ژبې په توګه منل شوې دي

## دلاتیني ژبو ځانګې

| پرتګالي | | اسپانوي | | فرانسوي | |
|---|---|---|---|---|---|
| هېوادونه | لویې وچې | هېوادونه | لویې وچې | هېوادونه | لویې وچې |
| انګولا | افریقا | اندورا | اروپا | موناکو | اروپا |
| برازیل | جنوبي امریکا | ګینه استوایي | افریقا | فلپین | آسیا |
| ختځ تیمور | آسیا | ارجنټاین | جنوبي امریکا | منځنۍ افریقا | افریقا |
| ساوتومه و ترنسیپ | افریقا | اکوادور | جنوبي امریکا | بنین | افریقا |
| کپ وردو | افریقا | االسلوادور | جنوبي امریکا | بروندي | افریقا |
| ګینی بیساو | افریقا | اوروګوای | جنوبي امریکا | بورکینافاسو | افریقا |
| | | بولیوی | جنوبي امریکا | توګو | افریقا |
| | | پیرو | جنوبي امریکا | چاد | افریقا |
| | | پاناما | جنوبي امریکا | جیبوتي | افریقا |
| | | پاراګوی | جنوبي امریکا | روندا | افریقا |
| | | دومنکین | جنوبي امریکا | ساحل عاج | افریقا |
| | | چیلي | جنوبي امریکا | سنیګال | افریقا |
| | | کلمبیا | جنوبي امریکا | سیشل | افریقا |
| | | کستاریکا | جنوبي امریکا | کومورو | افریقا |
| | | کیوبا | جنوبي امریکا | ګا بون | افریقا |
| | | ګوایتیمالا | جنوبي امریکا | ګینه | افریقا |
| | | نیکاراګوا | جنوبي امریکا | لوکزامبورک | اروپا |
| | | ونزویلا | جنوبي امریکا | مادغسکر | افریقا |
| | | هندوراس | جنوبي امریکا | موناکو | اروپا |
| | | | | نیجریا | افریقا |
| | | | | نیجر | افریقا |
| | | | | کامیرون | افریقا |
| | | | | کانګو برازویل | افریقا |
| | | | | کانګو کنشاسا | افریقا |
| | | | | هایتي | منځنۍ امریکا |
| | | | | کاناډا (انګلیسی و فرانسوي) | شمالي امریکا |



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د لاتیني ژبې د یوې څانګې پرتګالي،اسپانوي، فرانسوي او نورو په باره کې په خپلو منځو کې بحث وکړي چې ولې د نړۍ په زیاتو هېوادونو کې نوموړې ژبې تر اوسه پورې رسمي ژبې دي؟ د بحث پایلې دې د ډلې استازی ټولګي ته بیان کړي او ښوونکی دی د ډلې د بحث پایلې له خپلو معلوماتو سره راټول کړي او ټولګي ته دې وړاندې کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱- د لاتیني ژبې د کورنۍ څانګې معرفي کړئ.

۲- فرانسوي ژبه، له فرانسې پرته د نړۍ په څو هېوادونو کې رسمي ژبه ده؟

۱- فرانسوي ژبه د لاندې ژبو د کورنۍ یوه څانګه ده.

الف: جرمنیک ب: لاتین ج: سلاوي د: سانسکرت

۲- اسپانوي او پرتګالي ژبې د لاندې ژبو څانګه ده.

الف: سلاوي ب: پخواني یونان ج: لاتین د: جرمنیک



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د هغه جدول په مرسته چې د هېوادونو رسمي ژبه پکې فرانسوي، پرتګالي او اسپانوي ده د نړۍ په نقشه کې تثبیت کړئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

## د- جرمني ژبه




د جرمني ژبې د جغرافيايي وېش نقشه ولولئ او په نقشه کې د جرمني ژبې د نفوذ ساحه تثبيت کړئ.
د زياتو معلوماتو لپاره اړونده جدول هم ولولئ.

يوې قبيلې له ميلاد څخه مخکې د لومړنۍ زرکلنې دورې په منځنۍ برخه کې د المان په شمال او د سکنديناوي د ټاپووزمې په جنوب کې ژوند کاوه او له دويمې ميلادي پېړۍ څخه وروسته يې نورو سيمو ته مهاجرت وکړ چې اوس هلته استوګن دي.

د جرمني ژبه د اندو اروپايي ژبو له ډلې څخه ده چې انګلو ساکسون ژبې لکه: الماني، هالنډي او انګليسي، د ايسلينډ د خلکو ژبه او د سکنديناوي ژبې (د ناروې، سوېډن او ډنمارک د خلکو ژبې) او ګوتيک ژبه Gothic احتوا کوي. د ګوتيک د ژبې اثار د ميلادي څلورمې پېړۍ را په دې خوا موجود دي.

جرمني ژبه په دوه محلي لهجو وېشل شوې ده:

۱- د لوړو سيمو جرمني ژبه، چې په جنوبي برخه کې پرې خلک خبرې کوي او د جرمني ژبې رسمي ادبيات جوړوي.

۲- د هوارو سيمو جرمني ژبه چې د هېواد په شمالي جلگو کې پرې خبرې کېږي. له دې ژبې څخه فلامندي او هالنډي ژبې مشتق شوې دي. الماني ژبه د المان د هېواد سربېره د اطريش، لختين شتين او سويس (الماني، فرانسوي او ايتالوي) رسمي ژبې دي. د لوکزمبورگ ۷۰ سلنه خلک او د هالنډ يو شمېر خلک په الماني ژبه خبرې کوي.

د يادونې وړده چې انگليسي ژبه هم د جرمني د هوارو سيمو د خلکو د ژبې يوه څانگه ده چې د انگلو ساکسون Anglo Saxon د قبيلې د خلکو په واسطه په شپږمه ميلادي پېړۍ کې انگلستان ته يوووړل شوه او وروسته د فرانسوي تورو سره گډه شوه. د انگلستان خلک او د ايرلينډ د يوې برخې خلک په هغې گړېږي.



## په ټولګي کې فعالیت:

ټولګی دې په مناسبو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د نقشې له مخې د جرمني ژبې سیمې په نښه کړي او د ډلې استازی دې هغه هېوادونه چې الماني ژبه په کې ډېره مروجه ده، خپلو ټولګیوا لو ته وروپېژني.

### د اندو اروپایي کورنۍ ژبې



## پوښتنې:

لنډځواب ورکړئ

۱- د اروپا کومې ژبې د جرمني ژبې يوه برخه ده؟

۲- د جرمني ژبې څخه کومې ژبې رابيلې شوې دي؟

۳- د سکندنوي ټاپووزمې هغه ژبې چې جرمني ريښه لري، نوم يې واخلئ؟

٤- الماني ژبه د کومو هېوادونو رسمي ژبه ده؟



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د اروپا د لويې وچې نقشه بې ليکنې رسمه کړئ. د ژبو د عمومي جدول په مرسته د جرمنيک لويديځ، ختيځ او شمالي جرمني د هند او اروپايي ژبو د کورنۍ سيمې او څانګې په بېلابېلو رنګونو رنګ کړئ او د جغرافيې د مضمون په را تلونکي ساعت کې يې خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړئ.

## هـ-د چېنايي، جاپاني او اندونزيايي ژبو په باره کې څه پوهېږئ؟




**د ۱۳۷ مخ نقشه او چارت ولولئ او ووایاست چې چینایي ژبه له جاپاني څخه څه توپیرلري؟**

چېنايي ماندرين ژبه لکه: د ويتنامي (انامي)، تبتي، تايلنډي او ميانماري(برمايي) ژبو په څېر د ژبپوهنې د اصطلاح له مخې يو هيجايي ژبه ده. د دې ژبې کلمې جلا سېلابونه لري. د کلماتو صرف ډېر لږ. د هغو د تغير سبب ګرځي.

چېنايي ژبه ډېره پخوانې او د پراخو ادبياتو لرونکې ده. د دې ژبې الفبا څلور سوه توري لري او مصوره ده او څو سوه فرعي نښې هم لري. نو له همدې امله د هغې زده کړه ستونزمنه ده او هر څوک هغه نه شي زده کولی او د ولس د بېسوادۍ سبب ګرځېدلې وه. له همدې امله د هغې د اسانولو له پاره هڅې شوې دي. د دې ژبې ويونکې په خپلو منځو کې نژادي او توکميزې اړيکې لري او د شمېر له مخې د آسيا د لويې وچې نيم نفوس جوړوي او د نفوذ ساحه يې د آسيا په ختيځ کې ده.

• په څو سيلابي ژبنۍ ډله کې کوريايي، جاپاني، د سايبريا د خلکو زياته برخه، منځنۍ آسيا، د راويدي او هندي ژبې شاملې دي. چې په دې ژبنۍ ډله کې د مختاړې او روستاړې ډېرې پېچلې کلمې موجودې

دي.

• هغه ژبې چې نرمښت منونکې دي د جلا عنوانو تر سرليک لاندې مخکې معرفي شوې دي.

اندونزيايي ژبه: چې د مالايي ژبې د ماليزيا د هېواد د جنوبي برخې څخه بېله شوې ده د اندونزيا د هېواد رسمي ژبه ده. په ۱۹۲۸ ميلادي کال کې د ملي ژبې په توگه وټاکل شوه. د وخت په تېرېدو د عربي، چيني، هالنډي، پرتگالي، سانسکريټي، تاميلي، فرانسوي او انگليسي ژبه کلمې په دې ژبې کې شاملې شوې دي. د بېلگې په توگه په دې ژبه کې تقريباً د هالنډي ژبې ۷۰۰۰ کلمې موجودې دي.

## په ټولگي کې فعاليت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. د ژبو د کورنۍ نقشه دې په (۱۳۷) مخ کې په غور ولولي او بيا وروسته دې د ژبړ پوستو خلکو ژبې د هغو د اړونده هېوادونو سره يو د بل په مرسته وټاکي ښوونکی دې د فعاليت پايله د خپلو معلوماتو سره راټول کړي

## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱- د ماندرين چېنايي ژبې ځانگړتياوې ووایاست.

۲- آسيايي يو سېلابي ژبې کومې دي؟

سم ځواب انتخاب کړئ

۱- چينايي ژبه په کومې کورنۍ پورې اړه لري:

الف: يوسيلابي ب: څوسيلابي ج: نرمښت منونکي د: ټول ځوابونه سم دي

سم ځوابونه غوره کړئ.

۱- اندونزيايي ژبه له مالايي ژبې څخه بېله شوې ده.

۲- ماندرين چېنايي ژبه ٤۰۰ توري او څو سوه نښې لري؟

۳-د ويتنامي، تبتي، تايلنډي او برمايي ژبې څو سيلابي ژبې دي؟

## له ټولگي څخه بهر فعاليت:

د آسيا د لويې وچې نقشه بې ليکنې رسم کړئ او يو سيلابي او څو سيلابي ژبې په جلا رنگونو رنگ کړئ او په راتلونکي ساعت کې يې خپلو ټولگيوالو ته وړاندې کړئ.

## و- د بالتیک- لیتواني او سلاوي ژبې

### د ایندو اروپایي ژبو کورنۍ

جرمنیک
سلاویک
بالتیک
سلتیک
ارمني
هلنیک
نوی یونان
البانی
ایتالیک
اندو اروپایي

ختیځ
روسي
اوکرایني
بلاروسي

جنوبي
بلغاري
مقدوني
سربي او کرواسي
بوسني
سلواني

لویدیځ
چک
سلواک

لیتونی
لیتوانی
پخوانی پروس

د ۱۳۷ مخ نقشه او پورتنی گراف په غور ولولئ او وواياست چې سلاوي ژبه په کومې ژبنۍ کورنۍ پورې تړلې او کومې څانگې لري؟

سلاوي ژبه د هندو اروپايي ژبو له څانگو څخه ده چې په ختيځه اروپا او د بالکان په نورو سلاوي هېوادونو کې مروجه ده.

د مسيحيت د لومړۍ پېړۍ پېل کې بالتيکي او سلاوي قبيلو د ختيځې اروپا لويه برخه نيولې وه چې په لويديځ کې يې د جرمني قبيلې او په جنوب کې يې اريايي قبيلو استوگنه درلوده د پنځمې پېړۍ څخه وروسته سلاويانو د خپل نفوذ سيمه په بېلابېلو خواوو کې پراخه کړه او اوس سلاوي ژبې د ختيځې اروپا په پراخه ساحه کې رواج لري.

سلاوي ژبه زياتې محلي لهجې لري چې ډېره مهمه يې روسي ژبه ده چې د سايبريا په ټايگا، د ترانس سايبريا د اوسپنې کرښې په دواړه اړخونو، آذربايجان او اوکراين کې مروجه ده.

سلاوي ژبه په څو محلي لهجو هم وېشل کېږي چې د هنگري او بالکان يو څه خلک او همدارنگه چکيان، سلواکيان. پولنډيان، سربيان. بوسنيان، کرواتيان، بلغارياپان او د مقدونيې خلک پرې خبرې کوي.

د بالتیک د سمندرګي د سواحلو د خلکو ژبه د سلاوي له ژبې سره ورته والی لري او لیتوانیایي ژبه هم د سلاوي ژبې د کورنۍ څانګه ګڼل کېږي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ چې د سلاوي ژبې د عمده څانګو په باره کې په خپلو منځو کې بحث وکړي او د بحث پایله دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي. ښوونکی دې د بحث موضوع راټوله او له خپلو معلوماتو سره یو ځای دې شاګردانو ته واوروي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱- سلاوي ژبه د کومې ژبنۍ لویې کورنۍ څانګه ګڼل کېږي؟

۲- سلاوي ژبه د اروپا په کومه برخه کې زیات ویونکي لري؟

۳- د سلاوي ژبې مهمې څانګې معرفي کړئ.

٤- د بالتیک ژبه په کومو څانګو وېشل شوې ده؟

سم ځوابونو په نښه کړئ

۱- سلاوي ژبه د اندو اروپایي ژبو څانګه ده (        )

۲- سلاوي ژبه زیاتره په ختیځه اروپا او د بالکان په نورو هېوادونو کې مروجه ده؟

۳- د سلاوي ژبې مهمه څانګه روسي ژبه ده (        ).



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د اروپا نقشه بې لیکنې رسم کړئ او د سلاوي ژبې د نفوذ سیمه په یو رنګ په نښه کړئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# ز- هندي او اردو ژبې




پورتنی جدول په غور ولولئ او ووایاست چې د اردو ژبه د کومې ژبنی ډلې پورې اړه لري.

هندي ژبه د هند اصلي او رسمي ژبه ده. اردو د پاکستان او بنگالي د بنګله دېش اصلي او رسمي ژبې دي.

اردو په تاريخي لحاظ د سانسکريت څخه مشتق شوې ده له فارسي سره گډه شوې او له هغې څخه يوه نوې ژبه د اردو په نوم جوړه شوې ده. په پای کې د بېلابېلو لاملونو له مخې د پاکستان، بنګله دېش او هند د يوې برخې گډه ژبه گڼل کېږي. دغه ژبه د شاه جهان د حکومت په دوره کې ۱۶۲۷ -۱۶۸۵ میلادي کال پورې په هند کې د تیموریانو د کورنۍ بنسټ اېښودونکي د ظهرالدين بابر لمسی چې د هند د مغلانو په نوم هم يادېږي د اردو ژبې په نوم ونومول شوه.

اردو ژبه د پخوانۍ فارسي، ترکي او هندي ژبو څخه جوړه شوې ده. لومړني بنسټونه یې په هند کې د مسلمانو فاتحینو په راتلو سره ایښودل شوي دي. څرنګه چې د سلطان محمود غزنوي او د هغه د زوی سلطان مسعود د حکومتونو په دوره کې هندیانو ته د غزنویانو په دربار کې لوړې څوکۍ ورکړل شوې وې، په هند کې د غزنویانو د دربار ژبه هم فارسي او د هند مسلمانو حاکمانو په همدې ژبې خبرې کولې نو له همدې امله د دري ژبې اغېزې په اردو ژبه کې را منځته شوې. د اردو اصطلاح ترکي ده او معنا یې عسکر او د عسکرو قرارګاه ده.

څرنګه چې ترک، فارس او هنود عسکر په یوه عسکري غونډ ځای کې یوځای وو، نو د اردو ژبه له درېو ژبو ترکي، دري او هندي ژبو څخه جوړه شوه او د اردو په ژبه یاده شوه چې وروسته د انګلیسانو د څو پېړیو واکمنۍ په واسطه انګلیسي اصطلاحات پرې هم ور زیات شول.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په دوه نفري ډلو ووېشئ، هره ډله دې د اردو ژبې په تاریخچه په خپلو منځو کې بحث وکړي او د بحث موضوع دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي. د مضمون ښوونکی دې د بحث موضوع را ټوله کړي او لاس ته راغلي معلومات دې له زده کوونکو سره شریک کړي.

## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱- د اندو اریایي معاصرې ژبې کومې دي؟

۲- اردو ژبه ولې په دې نوم یادېږي؟

لاندې جملې بشپړې کړئ.

۱- اردو ژبه د...................... د حکومت په دوره کې د اردو په نوم یاده شوه.

۲- اردو ژبه له ______، ______ څخه جوړه شوې ده.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې د جنوب ختیځې آسیا نقشه بې لیکنې رسم کړي او اردو ژبي هېوادونه دې په جلا رنګ، رنګ کړي او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې دې په ټولګي کې زده کوونکو ته وړاندې کړي.

# اووم څپرکی

## ۷-۱۰ اړیکي او نړیوال کېدنه Globalization







آیا د نړیوال کېدو له موضوع سره بلد یاست.

هغه پرمختګونه چې د پوهنې په بېلابېلو برخو کې رامنځته شوي.لکه مخابرات، په تېره بیا هغه معلومات چې د مصنوعي سپوږمکیو، رادار او انټرنېټ او داسې نورو څخه لاس ته راځي، نړۍ یې له پخوا څخه ډېره نژدې کړې ده. د هېوادونو ترمنځ اړیکې یې ټینګې کړې دي.

له لرې فاصلې څخه معلوماتو Remote sensing په سوداګرۍ، صنعت، ټرانسپورټ (ځمکني، هوايي او سمندري)، دود او د هېوادونو او له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته د مالونو او کالیو په لېږدولو کې آسانتیا رامنځته کړې ده. نو همدې ټولو مسألو نړیوال کېدنه، په تېره بیا په جغرافیه کې الکترونیکي مخابراتو او د مصنوعي سپوږمکیو اړیکو خپل حقیقي اړخ غوره کړی دی. د یادونې وړ اسانتیاوې یې د جغرافیې په بېلابېلو برخو کې برابرې کړې دي او په دې اساس یې نړۍ په یوه لوی مقیاس د انسانانو ګډ کور جوړې کړی. د ساینس او تکنالوژۍ د پرمختګ، فضا ته د انسان سفر، د فضایي تم ځایونو شتون او د مصنوعي سپوږمکیو لېږل د ځمکې شاوخوا ته انسان وکولی شول چې د هغو په مرسته په بېلابېلو برخو کې اړیکې یو له بل سره نژدې کړي. د مثال په ډول د مصنوعي سپوږمیو په مرسته انسان کولی شي له کابل څخه نیویارک، کاناډا او د نړۍ نورو لرېو سیمو ته، له مکاني واټن سره سره په ډېر لږ وخت کې تماس ونیسي.

په دې سربېره په سوداګرۍ، بانکي چارو، د اسعارو دتبادلې او راکړې ورکړې د ودې او ټرانسپورټي چارو او نظامي چارو کې د نړۍ ټولې سیمې د معلوماتو د پوښښ لاندې راولي. نو زماني او مکاني واټن د تماس لپاره نژدې شوی دی چې د نړیوالتوب Globalization مفهوم افاده کوي

د اړیکو پرمختګونه یا Telecommunication لکه: پرمختللی رادار، ټېلفونونه، موبایل، انټرنېټ، فکس او د نړۍ د سپوږمکیو سیستمونه د نړۍ هېوادونه یو بل ته نژدې کړي او هغه واټن چې د نړۍ د هېوادونو ترمنځ موجود و، له منځه لاړ.

د ارتباطي او اړیکو او خبرتیا وسایلو چټکه وده لکه فکس، کمپیوټر، انټرنېټ، ټېلفون، ټلویزیون او داسې نورو د هېوادونو د نژدې کولو لپاره زمینه برابره کړې ده، د مثا ل په ډول که چېرې د وارداتي

مالونو واردوونکي وغواړي له جاپان څخه زيات سوداګريز مالونه او کالي نيويارک او دوبۍ ته وارد کړي. واردوونکي د انټرنېټ په مرسته له اړوندو کمپنيو څخه د مالونو د لېږدولو غوښتنه کوي. په لومړي پړاو کې فرمايش اخېستل کېږي او وروسته صادروونکې کمپنۍ د مالونو بيه، کرايه او د مالونو د بيمه کولو اطلاع ورکوي.

واردوونکی د الکترونيکي اويز په واسطه د مالونو بيه د انټرنېټ له لارې مقابل لوري بانکي حساب ته استوي او وخت پر وخت د انتقالاتي وسايلو خط السير د مصنوعي سپوږمکيو، انټرنېټ، موبايل په واسطه کنټرولېږي، ترڅو چې مالونه اخيستونکي ته ورسېږي.

د لېږدونې دا بهير د نوري فايبر يا الکترونيکي اسانتياوو په مرسته اسانه شوی دی او د زرګونو کيلو مترو واټن په يوه دقيقه کې تنظيموي. دغه په نړۍ کې د ارتباطي مسايلو د نړيوالتوب ګټه ده.

## په ټولګي کې فعاليت:

ګران زده کوونکي په دريو ډلو له وېشلو څخه وروسته د نړۍ د دريوو مهمو وسيلو لکه: راډيو، ټلويزيون او ټيلفون په باره کې بحث وکړي او د بحث پايله دې د ډلې استازي خپلو ټولګيوالو ته بيان کړي او ښوونکی دې له خپل معلومات سره د فعاليت نتيجه راټوله کړي.

### پوښتنې:

له څلورو ځوابونو څخه سم ځواب غوره کړئ

۱- ګلوبلايزيشن څه دی:

الف: اړيکې ب: نړيوالتوب ج: سياسي نظام د: د اړيکو نشتوالی

۲- ټيلفون د لاندې موضوعاتو لپاره کارول کېږي:

الف: د کاليو تبادله ب: د سوداګريزو کاليو تسليمول

ج: د موسسو او افرادو ترمنځ د اړيکو تامينول د: هيڅ يوسم نه دی

جمله بشپړ کړئ:

۳- انټرنېټ په نړۍ کې ښه وسيله ده.

لنډ ځواب وواياست:

٤- د عصري پرمختللو ارتباطي وسايلو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت:

ارتباطي وسايل کوم مفهوم افاده کوي او ارزښت يې په کومه برخه کې دی؟ مهرباني وکړئ په کتابچو کې يې وليکئ او د جغرافيې په راتلونکي ساعت کې يې شرح کړئ.

# د اړیکو د وسیلو ډولونه:




## د اړیکو څو ډوله وسیلې پېژنئ؟

د پیغام په انتقال کې د جغرافیایي حقایقو موندل، د نورو علومو په څېر، د اړیکو د وسیلو پورې اړه لري. نو له همدې امله د اړیکو د وسایلو غوره ډولونو زده کړه د جغرافیایي څانګې د زده کوونکو لپاره حتمي او اړین کار دی. په تېره بیا د نن ورځې څېړنې د لمریز نظام، مصنوعي سپوږمکیو او د هغو تحولاتو او د حقایقو د موندلو په هکله لکه کانونه، کرنیز افتونه او داسې نور او همدارنګه نوي پرمختګونه د کایناتو او د سیارو په هکله د حقایقو موندل او د هغو اړیکې له ځمکې سره هغه اړینې مسألې دي چې د مخابراتي وسایلو په واسطه سرته رسېږي.

انسانانو د ژوندانه له لومړیو وختونو څخه په ځمکه باندې له اشارو، نښو او ساده وسیلو څخه ګټه اخیستله. همدا رنګه ډول او نغاره به یې وهله او بیا وروسته یې له اهلي حیواناتو څخه ګټه اخیستله او په پای کې له موټر، سیم لرونکي ټېلفون مونولوګ او بې سیم ټېلفون، راډیو، ټلویزیون، انټرنېټ او رادار څخه یې ګټه اخیستله.

ډیجیتل ټېلفون او مونولوګ څخه ګټه اخیستنه په اوسني وخت کې مخابراتي ستونزې حل کړې او یو له بل سره یې اړیکې ټینګې کړې دي.

د تیلي کمونیکشن په برخه کې اختراعګانو د نړۍ څېره بدله کړه او د اړیکو په سیستم کې پرمختګونه په هوانوردۍ، سمندري ترانسپورټ او د حمل و نقل په ډېرو نورو برخو کې بنسټیز تغیرات رامنځته کړي. لوی بدلونونه په تېره بیا له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته اختراعګانې چټکې شوې. ډله ییزې اړیکې په اروپا او امریکا کې د اړیکو معاصرې دستګاوې جوړې شوې.

د ارتباطي وسیلو په توګه د راډیو را منځته کېدلو، وکولی شول چې انسانان یو له بل سره نژدې کړي او د راډیو منځنۍ، لنډې، اوږدې او FM څپې لرې واټنونه د غږ د خپرولو په واسطه نژدې کړي. د سوداګریزو مالونو اخبار خپرول، د تولیدي، صناعتي او تخنیکي مالونو اعلانول، ورځپاڼې، تلویزیون، انټرنېټ سپوږمکۍ د اړیکو ډېرې لویې وسیلې شمېرل شوي چې په جغرافیایي څېړنو کې ورځ‌څخه زیاته ګټه اخیستل کېږي. د ګوګل Google د انټرنېټ سایټ کې هغه پروګرام چې د (PC Glob) یا

د نړۍ د اطلس په نوم یادېږي، ځای پرځای شوی دی چې اقتصادي او فزیکي، اوبو او هوا او داسې نورو په باره کې معلومات انسان ته ورکوي. فضایي او کیهاني سفرونه او د مصنوعي سپوږمکیو او ځمکې تر منځ د اړیکو ټینګول په پرمختللي ډول بدل شوي دي او معاصرو کیهاني څېړنو وکولی شول چې د طبیعت د ځینو رازونو په پېژندلو او کشفولو کې له انسان سره په ډېره ښه طریقه مرسته وکړي. په مصنوعي سپوږمیو کې د پرمختللو کمرو نصبول د ځمکې د کرې او سمندرو په باره کې د ځینو حقیقتونو د روښانه کولو سبب شوي دي او نوې موضوعګانې یې د ځنګلونو، کانونو، سمندرونو او د ژوندانه د چاپېریال په هکله سپړلي دي.

د انسان د ژوندانه په ټوله موده کې د اړیکو عمده وسیلو پر مختګ کړی دی چې لاندې برخې لري:

۱- لومړنۍ وسیلې، لکه: الوتونکي (هدهد او کوترې) او اهلي حیوانات لکه آس، اوښ، خر، قاطر.

۲- عصري وسیلې، لکه: د میډیا د اړیکو وسیلې راډیو چې منځنۍ، لنډې، اوږدې او FM څپې لري، ټلویزیون، موبایل، کمپیوټر، انټرنېټ، مصنوعي سپوږمکۍ چې پاس ورڅخه یادونه وشوه.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په بېلو ډلو وویشئ چې د اړیکو د وسیلو نومونه واخلي او د سپوږمکیو نقش د فضا او ځمکې په نوو کشفیاتو کې بیان کړي.

## پوښتنې:

سم ځواب وټاکئ:

۱- میډیا څه ده:

الف: اخبار ب: ډله ییزې اړیکې ج: راډیو د: ټول ځوابونه سم دي

۲ – د سپوږمکیو څخه د جغرافیې په کومو مسألو کې ګټه اخېستل کېږي؟

۳- د اړیکو اصلي وسایل__،__،___، ___، او___،___، احتوکوي.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

ګرانو زده کوونکو د تیلي کمونیکیشن په باره کې لنډ معلومات ورکړئ او له موبایل څخه ګټه اخېستنه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې ټولګي ته وړاندې کړئ.

# الف: پوسټ Post په نړۍ کې.

## ایا د پوسټ په باره کې معلومات لرئ؟

له ډېرې پخوا زمانې را هیسې په نړۍ کې پوستي سیستم و چې نوموړي فعالیتونه په چین، مصر، یونان او د پخواني روم په امپراتورۍ کې له حیواناتو او الوتونکو څخه په ګټه اخېستنې لیکونه او پیغامونه انتقالیدل. کله چې په اقتصاد کې مختلف شغولونه منځته راغلل نو د پوستي خدمتونو په واسطه یې خپلې اړتیاوې د اړیکو په برخه کې پوره کولې. په هغه وخت کې پوستي تشکیلات نیم دولتي وو چې دغه حالت د منځنیو پېړیو تر نیمایي پورې دوام وکړ. خو دغه کار ورو ورو تغیر موند. کله چې غوښتنې زیاتې شوې، پوسټ پرمختګ وکړ.

همدا رنګه د امویانو او عباسیانو د امپراطورۍ په دوره کې له پوستي سیستم څخه ګټه اخیستل کېده او هغه یې د ښارونو او هېوادونو د امنیت لپاره ډېره ښه وسیله ګڼله. د هارون الرشید په زمانه کې خالد برمکي د امپراطورۍ د پوستي متصدي په توګه مقرر شو چې د البرید په نوم یادېده.

د چاپ د ماشین اختراع او په بېلابېلو هېوادونو کې د لیک لوست او لومړنیو زده کړو زیاتېدل، د نوو لویو وچو کشفېدل، د حمل و نقل د وسایلو زیاتوالی د تګ او راتګ لپاره اسانتیاوې او د هغو تر منځه یې اړیکې زیاتې کړې چې په پای کې په اړیکو کې وده زیاته شوه.

په شپاړسمې میلادي پېړۍ کې پوسټ د هېوادونو له سرحدونو څخه بهر شو او د فرانسوا تاکسي په همت لومړي ځل لپاره پوستي خدمتونه رامنځته شول او په اروپا کې څو هېوادونه د پوستي موادو چې یوازې لیکونه یې احتوا کول، په تبادلې لاس پورې کړ.

په ۱۸ مې میلادي پېړۍ کې پوستي ساحه پراخه شوه او ویې کولای شول چې د اړیکو د یوې باورې وسیلې په توګه خلکو ته وسپارل شوه. هېوادونو خپل منځي د پوستي تبادلې لپاره دوه اړخیزې سراسري موافقتنامې لاسلیک کړې. د بخار د بېړیو اختراع او د اوسپنې کرښې د منځته راتللو سره پوستي فعالیتونه چټک شول. نړیواله پوستي راکړه ورکړه د وخت د حمل و نقل له وسیلو څخه ګټه اخېستنه، د پوستي تشریفاتو د ساده کولو او د اجرتونو په باره کې د یو ډول توب له را منځته کېدلو پرته ممکن نه وه . نو له همدې امله راولانډ هل انګلیسي Mr Rawland Hill په ۱۸٤۰ میلادي کال کې نرخنامه او د هېواد د سرحداتو په دننه کې یو پني پوستي ټکټونه رواج کړل.

لومړي ځل د نړۍ د پوستي اتحادیه د ټولو پرمختللو هېوادونو ترمنځ په ۱۸٦۸ میلادي

کال کې د المان د هېواد د پوستې د ادارې د کارکوونکي هانري په واسطه طرحه شوه او خپل دولت ته يې وړانديز وکړ چې په پورتنۍ طرحه په يوه کنفرانس کې چې د دولتونو استازي په کې ګډون ولري بحث وشي. وروسته د ۱۸۷٤ ميلادي کال د سپتمبر په ۱۵نېټه د ۲۱ غړو هېوادونو ترمنځ د کنفرانس په پايله کې پرېکړه چې د برن د معاهدې په نوم يادېږي لاسليک شوه، نوموړې پرېکړه په حقيقت کې د پوستي اتحادیې بنسټ ګڼل کېږي. کله چې د پوستې له عمومي اتحادیې سره ډېر شمېر هېوادونه يو ځای شول، د پوستې د نړيوالې اتحادیې په نوم ونومول شوه چې په ۱۹۹٦ م کال کې يې د غړو شمېر ۱۸۹ هېوادونو ته ورسېد.



## په ټولګي کې فعاليت:

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د پوستې د اسانيتاوو په باره کې بحث وکړي او د خپل بحث پايلې دې منظمې کړي او تنظيم شوي معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. فرانسوا تاکسي څوک دی؟

۲-د بخار بېړيو او د اوسپنې کرښې اختراع په نړيوال پوستي سيستم کې کوم تحولات رامنځته کړل؟

لاندې جملې بشپړې کړئ

۳. د نړۍ پوستي اتحاديه د لومړي ځل لپاره د ټولو هېوادونو تر منځ په___ کال کې د ___ له خوا په سويس کې جوړه شوه.



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د پوستې رول د انسانانو په ژوند باندې تشريح کړئ، چې له يوه مخ څخه زيات نه وي.

## ب: په نړۍ کې ټيلفون او موبايل Telphone and Mobil:

د نړۍ په سطحه د الکاتل (Alcatel) د سمندر لاندې د کېبلونو نقشه.



آيا کولی شئ د ټيلفون او موبايل په واسط مختلف پيغامونه خپل د نظر وړشخص ته ولېږئ.

په عصري ټکنالوژۍ کې ټيلفون Telephone او موبايل Mobile په ډله ييزو رسنيو کې د اړيکو ډېره مهمه برخه لري او له هغو څخه په جغرافيايي مسايلو کې د اړيکو د نيولو په برخه کې د يوې وسيلې په توګه ګټه اخيستل کېږي لکه: (آب و هوا، زلزلې، اورلګېدنې، د سوداګريزو او اقتصادي معلوماتو په برخه کې...) نو له همدې امله د ټيلفون او موبايل څخه ګټه اخيستنه په جغرافيايي موضوعګانو کې د ټولو زده کوونکو لپاره مهمه او اړينه ده. لکه چې مخکې يې يادونه وشوه، د لومړي ځل لپاره ګرام هام بل Gramham Bill ټيلفون اختراع کړ، چې د انسانانو په ژوند کې لوی قدم وو. وروسته بې سيمه ټيلفون اختراع شو چې په ۱۸۹۷ ميلادي کال کې لومړنی پيغام د ګګليمو مارکوني Gugliemo Marcone په واسطه له اروپا څخه د اطلس د سمندر څخه هغه خوا ته مخابره شو. دغه ازمايښت وښودله چې د راډيويي څپو په واسطه د اړيکو نېول امکان لري چې دغه عمل د شفاهي پيغام د لېږلو پيل دی چې له يوه سرې څخه بل سرې ته د کوچني ماشين په واسطه استول کېږي.
نولسمه پيړۍ د اړيکو او رسنيو په برخه کې د ډېرو اختراعګانو شاهده ده چې بې سيمه اړيکې د ملکي هوا نوردۍ او جوي څېړنو په برخه کې مهم تغيرات رامنځته کړي دي.
د دويمې نړيوالې جګړې څخه وروسته ډېرې او چټکې اختراعګانې رامنځته شوې او عصري ټيلفونونو د زړو ټيلفونونو ځای ونيوه. ملګرو ملتونو په ۱۹۷۰ ميلادي کال کې بې پرې مخابراتي مرکز جوړ کړ، د ملګرو ملتونو نماينده مک براېډ لومړنی پيغام د پاريس له يونسکو څخه د ټولې نړۍ هېوادونو ته خپور کړ. په ۱۹٤۷ ميلادي کا ل کې د ترانزېستور Transistor اختراع د نړۍ د مخابراتو په برخه کې زياتې اسانتياوې رامنځته کړې.د Mobile Radio Communication د لنډې تاريخچې څخه دا راڅرګندېږي چې د مخابرې د انفرادي خدماتو پروګرام په ټولنيز ژوندانه کې د

اړیکو د زیاتو پرمختګونو سبب شوی دی. د انفرادي مخابرې له تخنیک څخه ګټه اخېستنه چې په ۱۹۶۰ میلادي کال ۶۲ سلنه وه په ۱۹۷۰ میلادي کال کې ۷۲ سلنې ته زیاته شوه. اوس د شخصي مخابرې خدمات (Personal Communacation service) (P C S) په چټکۍ مخ په زیاتېدو دي.
بې سیمه ټېلفون چې لاتین نوم یې سیلولر Cellular دی، هغه ډول پرمختللي ټېلفون ته ویل کېږي چې د دوو تنو تر منځ اړیکي ټینګوي او هرځای ته د لېږد وړ وي. د سیلولر کلمه د Cell یا حجرې له کلمې څخه اخیستل شوې ده چې د موخو له مخې لویه یا کوچنۍ ساحه د موبایل د پوښښ لاندې راولي. چې دغه کار د موبایل د کمپنۍ په ظرفیت پورې اړه لري او ټاکلې ساحه د پوښښ لاندې راولي.
موبایل مخابراتي محرمیت هم لري چې هره کمپنۍ په هر هېواد کې ځانګړی نمبر هم لري چې د کود نمبر د دایرولو پرته اړیکې نیول ناشوني دي.

## په ټولګي کې فعالیت:

د لومړي ځل لپاره ټېلفون د کوم مخترع په واسطه رامنځته شو او انسانانو په ژوندانه کې د کومو تحولاتو لامل شو؟
مهرباني وکړئ په دې برخه کې خپل معلومات یو له بل سره شریک کړئ.

## پوښتنې:

سم ځواب انتخاب کړئ.
۱- د ټېلفون مخترع له لاندنیو مخترعینو څخه کوم یو دی؟
الف: ګراهامبل ب: انتوني ج: ماریا د: ګګلیمومارکوني
۲- سیلولر عبارت دی له:
الف: یو ډول پرمختللی ټېلفون دی چې د دوو کسانو تر منځ اړیکې ټینګوي
ب: انټرنېټي ساحه ده ج: د انالاګ ټېلفون ساحه ده د: هېڅ یو
سم ځواب په نښه کړئ
۳- ملګرو ملتونو په ۱۹۷۰ م کال کې له تراو پرته مخابراتي مرکز جوړ کړ.
٤- ټرانزیستور په نړۍ کې زیاتې مخابراتي اسانتیاوې منځته راوړې.
لنډ ځواب ورکړئ
۵- P C S اصطلاح تشریح کړئ

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

له مبایل څخه ګټه اخېستنه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او د جغرافیې په بل ساعت کې یې په ټولګي کې بیان کړئ.

## ج- فکس Fax په نړۍ کې



### د فکس ماشين په جغرافيايي موضوعګانو کې څه رول لري؟

د جغرافيې په ټولو څانګو کې يو له مهمو اړتياوو څخه يو هم له فکس څخه ګټه اخېستنه ده چې د هغې په واسطه پيغامونه لرې او نژدې سيمو ته استول کېږي. له فکس څخه ګټې اخيستنې د اړتيا وړ حقيقتونو د مستند کولو لپاره په جغرافيې او نورو برخو کې ډېرې آسانتياوې رامنځته کړې دي، لکه: صنعت، سوداګرۍ، توليدي وسايل، صادرات، واردات او داسې نور.

فکس نوې تکنالوژي ده چې په ۱۹۲٤ ميلادي کا ل کې چې د ريچارډ رنجر *Rechard H Ringer* په واسطه اختراع شو او لومړنی پيغام يې له نيوپارک څخه لندن ته واستاوه.

په ۱۹۷۰ ميلادي کال کې د ماشين په جوړښت او اجزاو کې د سمون لپاره بدلونونه رامنځته شول.

فکس د ليکلي پيغام د انتقال وسيله ده چې د کاغذ پرمخ ليکلي پيغامونه او رپوټونه دې ماشين ته ننه باسي او په څو ثانيو کې ټاکلي ځای ته رسېږي.

فکس ميخانيکي وسيله ده چې د هغې په واسطه اطلاعات او اسناد په ليکلي ډول د يوه سند په توګه انتقالېږي.

د فکس د ماشین له اختراع څخه وروسته تجارتي او صنعتي اسانتیاوې رامنځته شوې. د فکس د ماشین په مرسته حقایق ثبتیږي، سوداګریز فرمایشونه اخلي اسناد لیږدول کیږي، صادراتي او وارداتي اقلام او رسمي او شخصي اسناد استول کیږي. فکس نه یوازې په سوداګریزو او صنعتي موضوعاتو کې کارول کیږي. بلکې په مصنوعي سپوږمکیو کې هم ورڅخه کار اخیستل کیږي. محرم اسناد او نوي کشفیات له ځمکې څخه فضا ته او له فضأ څخه ځمکې ته لیږل کیږي.
نو له همدې امله فکس له ډله ییزو رسنیو څخه دی چې د هغه په واسطه شخصي او رسمي پیغامونه، سوداګریز، حقوقي او صنعتي معاملات او داسې نور په لنډ وخت کې لرې او نژدې سیمو ته سملاسي استول کیږي.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د فکس د کار په څرنګوالي، فعالیت او اهمیت باندې د ژوندانه په بېلابېلو برخو کې بحث وکړي. د هرې ډلې استازی دې د خپل بحث پایله په ټولګي کې وړاندې کړي.

## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱- فکس څه شی دی؟

۲- له فکس څخه د ګټې اخیستنې ځایونه په نښه کړئ.

سم ځواب غوره کړئ:

٤- د فکس په واسطه لاندې مهم مفاهیم استول کیږي.

الف: جغرافیایي    ب: صنعتي    ج: صادراتي او وارداتي    د: ټول سم دي.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې د فکس د اسانتیاوو په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي او د امکان په صورت کې دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

## د-انټرنېټ او ايمېل: Internet and Email •

له انټرنېټ او ايمېل څخه څرنګه ګټه اخيستل کېږي؟




پورتنی چوکاټ په نړۍ کې اړيکو او خبرتياوو ته د لاس رسي نسبت ښکاره کوي.

د مخابراتو ډېره نوې وسيله انټرنېټ او ايمېل دی چې په جغرافيې او نورو علومو او د ژوندانه په نورو برخو کې ځانګړې دندې سرته رسوي. جغرافيه پوهان د ځېړنو په ټولو مرکزونو کې د پيغامونو د انتقال لپاره له دواړو وسيلو څخه ګټه اخلي له ټولو مهمه خبره دا ده چې د پيغامونو اخېستل او په ځانګړې او محرمانه ډول د هغه لېږل، په هره اندازه چې وغواړو، په لنډ وخت کې سرته رسېږي. له دواړو وسيلو څخه ګټه اخيستنه په ټولو دولتي سوداګريزو مؤسسو او شخصي ډول سرته رسېږي.

کمپيوټر د نولسمې پېړۍ په نيمايي کې په کار پيل وکړ. له ۱۹۴٤ - ۱۹۵۱ ميلادي کلونو کې يې زياته وده وکړه. کله چې ويليم شاګلي ډيجيټل Digital ماشين کشف کړ، کمپيوټر نوره هم وده وکړه. انټرنېټ د کمپيوټر ځانګړی پروګرام دی چې د يوې بېلې شبکې په واسطه د کمپيوټر سره نښلول کېږي او بېل بېل پروګرامونه لري چې نه يوازې پيغامونه انتقالوي بلکې تصويرونه، علمي متنونه او نور ټولنيز،

سوداگریز، سیاسي ۰۰۰ او داسې نور د کمپیوټر له لارې د انټرنت په واسطه د پام وړ شخص ته رسوي. هر څوک او هره موسسه کولای شي په بېلو ادرسونو خپل ځانګړي سایټونه پرانیزي او ورځخه ګټه واخلي.

انټرنېټ یو تنظیم شوی سیستم دی چې د بشر په نننۍ ټکنالوژۍ کې د پیغامونو او اطلاعاتو په لېږد کې د چټکې او ښې منبع په توګه کارول کېږي.

ټول اسناد چې د انټرنېټ له لارې په کمپیوټر کې شامل شي، له چاپ وروسته لاس ته راځي.

انټرنېټ د اړیکو یوه ډېره ښه ارتباطي وسېله ده چې د نړۍ ټول هېوادونه په دې پروګرام کې شامل دي.

له ۱۹۹۰ میلادي کال څخه مخکې د کمپیوټر په واسطه هېڅ ډول اسانتیاوې نه وې لومړنۍ ځانګه یا دیپارتمنت چې د کمپیوټر ماشین په واسطه یې د مخابراتو اړیکې جوړې کړې د امریکا د متحده ایالتونو پوځي خبړنیز مرکز وو (DOD) په ۱۹۶۷ م کال کې A C M د کمپیوټري ماشینرۍ مؤسسه د امریکا په متحده ایالتونو کې یا د A R P A دفتر و، یو کوچنی ماشین یې جوړ کړ چې له یو کمپیوټر څخه بل کمپیوټر ته معلومات انتقال کړي. له یوه کمپیوټر څخه بل کمپیوټر ته د پیغام انتقال په دې پورې اړه لري چې لومړی دغه پیغام د Interface Massage Process (I M P) په واسطه په کمپیوټر کې دا خل شي.

د کلیفورنیا او لاس انجلس پوهنتونونو وکولی شول چې د انټرنېټ په واسطه د یوتا Utah له پوهنتون سره اړیکې جوړې کړي. د انټرنېټ پروګرام په ۱۹۹۰ میلادي کال کې د نړۍ په سطح په کار پیل وکړ. په کایناتو کې اوسني فضایي پروګرامونه څېړي او د رازونو د کشفولو لپاره د انټرنېټ په واسطه په ډېره آسانۍ له یوه ځای څخه بل ځای ته لېږدول کېږي.

په جغرافیه کې د انټرنېټ نقش د جغرافیایي حقایقو موندل دي. په دې ډول د قطبونو د کنګلونو، د ځمکې د کرې د تودوخې، د اوزون د طبقې نازک کېدل او د انرژۍ د سرچېنو د موندلو لکه: نفت، ګاز اوداسي نورو، طبیعي سرحدونو، په سمندر کې د کبانو د استوګنې د ځای د معلومولو، د ځنګلونو د ساتنې، د آب و هوا وړاندوینه، د تودوخې او سړو د درجې ټاکنه، د خاورې پېژندنه او

داسې نورو برخو کې ورڅخه کار اخیستل کېږي چې خبر ورکوونکو په ویب سایټ کې اچولي دي او وروسته د انټرنېټ، په مرسته هغه اخلي. له انټرنېټ څخه معلومات د دوه تنو، یا دوه دولتي یا شخصي مؤسسو ترمنځ تبادله کېږي په دې شرط چې د هغه بل لوري د ایمېل کود ورته معلوم وي. د مثا ل په ډول (http://www.google.Com).

د انټرنېټ د سپوږمکیو او نوري فایبر سره اړیکې زیاتره پیغامونه او کرنیز، اقتصادي معلومات او داسې نور په دقیق ډول له ځمکې څخه اخلي او دوهم ځل یې خپل اړوند مرکز ته مخابره کوي.

ایمېل Electronic Mail هم نوې ټکنالوژۍ شمېرل کېږي چې د سوداګریزو، صنعتي، سیاسي، دودي او انفرادي پیغامونو په لېږلو کې ډېرې سترې دندې سرته رسوي او د همدې ماشین په مرسته سملاسي دلرې او نژدې واټن ترمنځ ډېر ژر ارتباطات تامینېږي. لنډیز یې ایمېل (e- mail) دی.




ایمېل پیغامونه د راډیویي څپو په مرسته اخلي او لېږي چې د ایمیل د یوې دستګاه له مرکز څخه د بلې دستګاه په آدرس پیغام استول کېږي او په څو ثانیو کې اړونده آدرس ته رسېږي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د انټرنېټ او د هغه د استعمال په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړي  د بحث پایلې دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱- د ډیجیټل ماشین اختراع د کومو لویو تحولاتو سبب شوه؟

۲-د کمپیوټر په واسطه پیغامونه په څه ډول استول کېږي؟

۳- ایمېل څه ته وایي؟ تعریف یې کړئ

. جمله بشپړه کړئ:

٤- انټرنېټ په لومړي ځل په(          )په کار پېل وکړ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

له کمپیوټر څخه د ګټې اخیستنې څرنګوالی ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په ساعت کې یې په ټولګي کې بیان کړئ.

# ۷–۲۰ د سپوږمکیو شبکه Satellite Network

## د نړیوالو سپوږمکیو د اړیکو سیستم



## ایا د مصنوعي سپوږمکۍ په باره کې معلومات لرئ؟

مصنوعي سپوږمکۍ او ریموټ سنسنګ *Remote Sensing* د نوې تکنالوژۍ ډېره عصري وسیله ده جغرافیه پوهان یې د دې وړ کړي چې د جغرافیې اړونده مسایل د ځمکې په کرې او فضا کې چې تر اوسه نه دي کشف شوي، کشف کړي او انسان وکولی شي هغه رازونه وپېژني چې تر اوسه نه دي کشف شوي.

د مصنوعي سپوږمکیو شبکې Satellite Network د ځمکې او فضا په هکله معلومات زیات کړي دي. د هغو رول په جغرافیه کې څرګند دی لکه: د کرنې، کانونو، طبیعی زېرمو په هکله څېړنې، د آب و هوا وړاندوینه، د ځنګلونو شتون، د کبانو ښکار سیمې د بېړیو لارښوونه د سوداګریزو مالونو انتقال او داسې نور. همدارنګه د کیهان نوردانو (ستور مزلو) لپاره یې د فضایي مسافرت شرایط برابر کړي دي چې د سپوږمکیو په مرسته فضا ته سفرونه وکړي.

د سپوږمکۍ مخابراتي سیستم د کمپیوټر او ټیلفون په مرسته سرته رسیږي چې د سیلولر ټیلفون cellular phone یا cell په نوم یادیږي. د سپوږمکۍ مخابراتي سیستم د نوي ټکنالوژۍ پیچلی سیستم دی چې له فضا څخه ځمکې ته اطلاعات لیږي د Down Link او هغه پیغام چې له ځمکې څخه فضا ته لیږي د Link up په نوم یادیږی. سپوږمکۍ په فضا کې د استوا په کرښې، عمود، مایل یا موازي په ټاکلو مدارونو کې د ځمکې په شاوخوا ځای پر ځای شوي دي. ځینې مصنوعې سپوږمکۍ له ځمکې څخه په یوه واټن کې ثابتې ساتلې کیږي چې دا حالت د جیو سټیشنري Geo Stationary په اصطلاح یادیږي.

انسانان کولای شي چې د سپوږمکیو په مرسته د لمریزنظام او دهغه اړونده سیارو او دهغو څخه د ځمکې په برخه کې زیات معلومات حاصل کړي لکه: د ځمکې لوړې برخې، د ځمکې پر مخ روانې اوبه، د اوربښت اندازه او داسې نور. تازه څیړنو ښودلې ده چې سپوږمکیو انسان ته د دې وس ورکړی دی چې د طبیعت ځینې رازونه پیدا کړي او د زیاتو معلوماتو لپاره دغه ډول څیړنې په چټکۍ دوام لري. هغه هیوادونه چې سپوږمکۍ لري، دا دي: د امریکا متحده ایالتونه، روسیه، چین، هند او داسې نور. ځینې نور هیوادونه هم غواړي چې دغه نوې ټکنالوژي ولري.



زیاتره مخابراتي مسایل د سپوږمکیو له لارې تنظیمېږي لکه: راډیو، ټلویزیون او داسې نور. زیاتې سپوږمکۍ په فضاکې د پیغامونو د لېږلو او راډیویي څپو لپاره فعالیت کوي او ټولې نړۍ ته د راډیو ځانګړې څپې لېږدوي. په ځینو نورو مخابراتي برخو لکه: نظامي، استخباراتي او داسې نورو کې هم فعالیت کوي.

**یادونه**:

سپوږمکۍ په فضاکې د فعالیت پر وخت د دوه وزرو په واسطه چې په دواړو خواوکې یې دي، خپله د اړتیا وړ انرژي له لمرڅخه اخلي.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او په جغرافیه کې دې د مصنوعې سپوږمکیو د اهمیت (د آب و هوا د وړاندوینې، د اقتصادي،کرنیزو او پوځي موضوعګاتو) په هکله بحث وکړِي او د بحث پایلې دې د هرې ډلې مشر خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.



**پوښتنې**:

لنډ ځواب ورکړئ

۱- جیو سټېشنري Geo Stationary کوم حالت ته ویل کېږي؟

۲- Satelit Network په جغرافیه کې کوم خدمتونه سرته رسوي؟

لاندې جمله بشپړه کړئ:

۳-هغه پیغامونه چې له مصنوعي سپوږمکۍ څخه ځمکې ته رسېږي ........ او هغه پیغامونه چې له ځمکې څخه مصنوعي سپوږمکۍ ته استول کېږي..................په نوم یادېږي.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د مصنوعي سپوږمکیو د ډولونو او د هغو لپاره د اړتیا وړ انرژي په باره کې مقاله ولیکئ او د جغرافیې د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته واوروئ.

## ۸-۰۱ د سون د موادو لوګي او ګازونه



په هغه ځای کې چې اوسېږئ، د کومې دستګاه لوګی اوګاز تاسې ربړوي؟

د بدن سلامتي او روغتيا د انسان لپاره د ژوندانه اصلي اړتياوې ګڼل کېږي. هر هغه لامل چې د انسان سلامتيا او روغتيا ته تاوان اړوي، مضر دي. نو له همدې امله بايد د انسان د ژوندانه ځای له هر ډول ککړتيا او مضرو موادو څخه پاک وي. له دې پرته به زموږ د ژوندانه چاپېريال متضرر وي، بايد هغه ښه وپېژنو او د حل لاره ورته ولټوو. طبيعت په فطري ډول پاک دی او د ښتن تعالی له تحفو څخه دی نو له همدې امله د چاپېريال پېژندنه چې د جغرافيې لويه برخه ده، بايد په بشپړ ډول وپېژنو.

د ژوندانه چاپېريال د ژوندانه د ټولو پديدو يوه ټولګه Complex ده چې انسان، حيوان او نبات لپاره يې د ژوندانه شرايط برابر کړي دي. مهمې برخې يې ځمکه، د استوګنې ځای، خاوره، اوبه، نباتي پوښښ، حيوانات او اتمو سفير دي.

د وخت په تېریدو سره انسانان په دې پوهېدلي چې همدغه چاپیریال کولای شي چې زموږ ټولې اړتیاوې پوره کړي نو په چټکي له خپل چاپیریال سره اړیکي ټینګې کړې. په دې برخه کې یې زیاتې تجربې لاس ته را وړلې، د طبیعت له ښکلا او ستونزو سره بلد شول او د هغه له ګواښونو سره یې مقابله وکړه.

انسانانو پوهه حاصل کړه چې هر چاپیریال کې باید له طبیعت سره اړیکې ټینګې کړو چې د هغه له امکاناتو څخه ګټه واخلو. تودې او وچې سیمې د کرنې او د خوړو د برابرولو لپاره مناسبې نه وي. هغه شنې سیمې چې د سیندونو او جهیلونو په غاړوکې پرتې وي ټول شرایط یې د ژوندانه لپاره برابر کړي وو. نو د همدې سیندونو په غاړو کې لوي تمدنو نه رامنځته شول.

په هر ځاي کې انسانان هڅه کوي چې د طبیعي چاپیریال شرایط و پېژني او خپل ژوند له هغو سره برابر کړي او یا چاپیریال ته د خپلو اړتیا وو له مخې بدلون ورکړي.

هغه چاپیریال چې موږ په کې ژوند کوو ځانګړی نظم او قانون لري چې د خدای(ج) له خوا تنظیم شوي دی، د باران اوریدل، د باد لګیدل، دنبا تاتو وده، ټول دیوه ټاکلي قانون د بنسټ له مخې فعالیت کوي. موږ باید طبیعي قوانین وپېژنو او دهغورعایت وکړو او خپل چاپیریال پاک وساتو له هغه پرته زموږ طبیعي ژوند اغیزمن او د ټولو موجوداتو لپاره ژوند ستونزمن وي.

له بده مرغه له صنعتي تاسیساتو، فابریکو، په ځمکې باندې صنعتي پاتې شونو او ګلخانه یې مضرو ګازونو پورته کېدل د ځمکې اتموسفیر ککړ وي او د انسان، حیوان او نبات ژوند له خطر سره مخامخ کوي. د هوا د ککړ تیا په باره کې باید دیوه ځای د آب و هوا په باره کې مستند او دقیق معلومات ولرو.

اتموسفیر د انسانانو، حیواناتو، او نباتاتو لپاره د ژوندانه یوه مهمه پدیده ده. نو له همدې امله دغې حیاتي سرچېنې ته باید پوره پاملرنه وشي اوله دې سرچېنې څخه باید په ښه توګه ګټه واخیستل شي. هغه لوګي او ګازونه چې دسون له مواد و څخه پورته کېږي په ټوله نړۍ کې یې هوا ککړه کړېده. ککړه فضاء د انسان اونورو حیواناتو پر تنفسي سیستم په مستقیم ډول ناوړه اغېزه کوي او د کاربن ډای اکساید او کاربو مونواکساید، د متان غاز، کلور وفلوروکاربن او د نایتروجن اکساید تعاملات د وینې په دوران، او تنفسي جهاز او نورو باندې روغتیایي ناوړه اغېزه لري د ځمکې پر مخ د ګازونو او دودونو سرچېنه د

ډبرو سکاره، نفت اورلګیدنې او صنعتي کارخانو څخه عبارت دي.



د کابل د ښاري فضاء د حمل ونقل د وسیلو او د نفوسو د زیاتوالي او د ښاري ککړتیا پواسط غیر صحي او ککړه شوېده چې زموږ د ښاریا نو په روغتیایي نا وړه اغیزه کړې ده. هغه ټول مواد چې د هوا د ککړ تیا سبب ګرځي په لاندې ډول دي:

۱. زهري مواد

۲. کیمیاوي مواد

۳. دغږونو خپریدل

۴. د اضافي غیرصحي مواد

۵. د مصنوعي او اتومي موادو پاتې شوني

۶. د مضرو اجسامو له را ټولېدل

۷. سوځېدنې

۸. د مناسب کانا لیزیسیون نه شتون او داسې نور.

## په ټولګي کې فعالیت:

ز ده کوونکي په ډ لو وویشئ. د مضرو ګازونو په باره کې دې چې زموږ په روغتیا ناوړه اغیزه کوي بحث وکړي او د هغو پایلې دې د هرې ډلې استازی خپلو ټو لګیوا لو ته بیان کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

١. د ژوند چاپېریال تعریف کړئ

٢. کوم مواد د ژوند چاپېریال ککړوي؟

سمه جمله په نښه کړئ

٣. په فضا کې مضر گازونه د وینې پر دوران او تنفسي سیستمونو باندې مستقیم اغېزه لري. (     )

٤. د مضرو لوگیو او گازونو اصلي سرچینه د ځمکې پر مخ اور لگېدنې دي. (   )



## له ټولگي څخه بهر فعالیت:

ز ده کوونکي دې د کابل ښار د هوا د ککړتیا او د هغې د ضرر په باره کې معلومات راټول کړي او په ټولگي کې دې وریاندې خبرې وکړي.

## الف- د حمل و نقل (وړلو، راوړلو او لېږد رالېږد) وسیلې:



### د ژوند پر چاپېریال باندې د نقلیه وسایلو ګازونه او لوګي څه منفي اغېزې لري؟

نقلیه وسایل د انسانانو له اړتیاوو څخه ګڼل کېږي چې د کالیو او خلکو په انتقال کې ډېرې اسانتیاوې برابروي. خو دلته نقلیه وسایل په ښارونو کې د هوا د ککړتیا (Pollution) د لامل په توګه څېړل کېږي.

نقلیه وسایل په فضاء، ځمکه او اوبو کې د انتقال لپاره کارول کېږي. انتقالاتي شبکې په ټوله نړۍ کې د حمل و نقل ستونزې حلوي، خو د دې ترڅنګ د لوګي او ګازونو خپرول د ژوند چاپېریال ککړوي او د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو لپاره تنفسي ستونزې رامنځ ته کوي.

د نقلیه وسایلو مضر لوګي او ګازونه هوا ککړوي او د ټولو ژوندیو موجوداتو د روغتیا لپاره ناوړه هوا رامنځته کوي. د هوا د ککړتیا ګازونه لکه: لوګي، کاربن ډاې اکساید، نایټروجن اوکسایډ، سلفر، سرپ او داسې نور دي.

د نفوسو له زیاتوالي سره نقلیه وسیلو ته اړتیا زیاتېږي. د دې وسایلو ککړوونکي مواد د هوا د ککړتیا سبب ګرځي.

د وروسته پاتې هېوادونو د ژوند چاپېریال په ښاري او صحي معیارونو سمبال نه دي. پرمختللي هېوادونه په دې توانېدلي دي چې تر یوې اندازې پورې د نقلیه وسیلو د مضرو موادو مخه ونیسي، ځکه چې په دې هېوادونو کې نوي تکنالوژۍ او د نقلیه وسیلې د دې سبب شوي دي چې د مضرو ګازونو مخه ونیول شي. هغه نقلیه وسیلې چې د لوګي او ګازونو لامل کېږي، په ښارونو کې د تګ راتګ اجازه نه ورکول کېږي.

په دې وروستيو کلو کې زموږ گران هېواد افغانستان د زياتو نقليه وسيلو په لرلو په تېره بيا د کابل ښار چاپېريال د ککړتيا له مخې له ډېرو ستونزو سره مخامخ دی. د کابل د ښار ښکلې فضا مضرو گازونو او د زړو موټرو لوگيو او د بې کيفيته تېلو په استعمال سره چې په هوا کې د سلفرو او سرپو د زياتوالي سبب کېږي، خرابه کړې ده. کولی شو د نقليه وسيلو ککړتيا په ځمکني، سمندري او هوايي برخو ډلبندي او مطالعه کړو چې هرې برخې په خپل وار سره ځمکه، سمندر او فضا ککړه کړې ده. طبيعتاً صافه او طبيعي هوا ککړه نه وي خو دا انسانان دي چې د نوې ټکنالوژۍ څخه په گټه اخيستنې سره په ډېرو منطقو کې چاپېريال ککړوي.



## په ټولگي کې فعاليت:

ټولگی په څو ډلو ووېشئ او هره ډ له دې د هوا د ککړتيا Pollution د لاملونو په اړه يو له بل سره بحث وکړي او د بحث پايله دې د ډلې استازې خپلو ټولگيوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. پر مختللو هېوادونو څرنگه د هوا د ککړتيا مخه نيولې ده؟

۲. د نقليه وسايلو د افرازاتو ککړتيا په هوا کې د کومو ستونزو لامل گرځي؟

جملې بشپړې کړئ:

۳. نقليه وسيلې............. د ککړتيا لامل گرځي.

۴. د انسان روغتيا مستقيماً له ..............سره اړيکې لري.

۵. هغه لاملونه چې د ککړتيا سبب گرځي ..............په نوم يادېږي.

د سم ځواب انتخاب کړئ:

۶. کوم گازونه د هوا د ککړتيا سبب گرځي:

الف: اوکسيجن ب: نايتروجن اکسايد ج: کاربن مونواکسايد د- ب او ج سم دي.



## له ټولگي څخه بهر فعاليت:

د نقليه وسيلو په هکله فکر وکړئ چې ولې چاپېريال ککړوي. په دې هکله مقاله وليکئ او د جغرافيې په راتلونکي ساعت کې يې خپلو ټولگيوالو ته بيان کړئ.

## ب: د ژوند په چاپېریال باندې د کارخانو اغېزې:



کله صنعتي فابریکې ته تللي یاست؟ کوم ډول مضر گازونه له فابریکې څخه خارجېږي او د ژوندانه چاپېریال ککړوي؟

د ژوندانه چاپېریال په مجموعي ډول د جغرافیه پوهانو پام ځانته را اړولې ده.

اوسنۍ څېړنې ښیي چې د کارخانو جوړول د هوا، د ځمکې د روانو او د ځمکې لاندې اوبو د ککړولو لامل گرځي.

صنعتي انقلاب له اروپا څخه پیل شو چې اصلي زانگو یې د انگلستان هېواد دی او له هغه ځایه څخه نړۍ ته خپور شو او په شمالي امریکا، په تېره بیا د امریکا په متحده ایالتونو کې یې په پراخه پیمانه پراختیا و مونده او د موټر جوړولو، بېړۍ جوړولو، الوتکو جوړولو او په نورو برخو کې سلگونو فابریکو په کار پیل وکړ.

د آسیا د لویې وچې هېوادونو لکه جاپان، چین، هند او داسې نورو هم د بېلابېلو کارخانو

په جوړولو پیل وکړ او نورو زیاترو افریقایي هېوادونو او استرالیا کې هم په ځانګړو برخو کې لویې فابریکې جوړې کړي. دغو ټولو تاسسیاتو په بېلابېلو ځانګو کې د ژوندانه د چاپېریال په ککړولو کې زیاتې ستونزې رامنځته کړې، لکه: د کاربن ډای اکسایډ$CO_2$، د میتان $CH_4$، کلوروفلوروکاربن غاز CFC، نایتروجن ډای اکساید زهرجن ګازونه، د اوبو بړاسونه او د اتومي ذرو آیونونه او داسې نور په هوا کې داخلېږي چې د هوا فزیکي او کیماوي خواص تغیروي.

په ټولیزه توګه مضر ګازونه له فابریکو څخه خارجېږي. ځینې یې ډېر پورته ځي او هوا ککړوي. د مثا ل په ډول د کلوروفلورکاربن (choloro fluoro carbon) (C.F.C)ګاز له فابریکو او سړوونکو وسایلو څخه خارجېږي چې د هوا په لوړو پوړیو کې د اوزون په قشر کې کیماوي ترکیبونو سره تعامل کوي. د اوزون قشر ویجاړوي او په پای کې د ځمکې د تودېدو سبب ګرځي.

مضر ګازونه په ټولیز ډول د هوا د ککړتیا لامل ګرځي او ژوند له خطر سره مخامخوي چې په پای کې د بېلابېلو ناروغیو سبب کېږي لکه: د زړه، سږو، تنفسي، جلدي او داسې نورو.

په همدې ډول اتومي کارخانې راډیو اکتیف Radio Active waster پاتې شونې د لاندنیو ستونزو لامل ګرځي.

- اتومي وړانګې تشعشعات د یو کیلومتر مربع په ساحه کې تخریبات کوي.
- په کرنه، کښت او کار منفي اغېز لري.
- فضا ته داخلېږي.
- حیوانات، انسانان او نباتات په مرګ ګواښي.
- د چرنوبل اټومي چاودنې چې پراخه ساحه یې له منځه یوړه، د دې مطلب ښه بېلګه ده.
- د کاربن ډای اکساید د ګاز د تولید سبب ګرځي.
- د پوستکي سرطان رامنځته کوي.

• د خوړو موادو تاسیسات اغېزمن کوي.

د کارخانو ناوړه اغېزې، نه یوازې په ځمکه بلکې په فضا او سمندر کې هم د احساس وړ دي.

د فابریکو ناوړه اغیزې د ځمکې اتموسفیر هم ککړوي.

هغه سیندونه چې د فابریکو ترخنګ بهېږي، د فابریکو د اضافي موادو په واسط اغېزمن کېږي.

اتومي اضافي موادو هم د سمندر اوبه ککړې کړې دي. د نفتو له بېړیو څخه په سمندر کې د نفتو توییدلو هم د سمندر اوبه او سمندري ژوند یې متأثر کړی دی.

## په ټولګي کې فعالیت:

ټولګی په مساوي ډلو وویشئ او هره ډله دې د فابریکو د ضرر په باره کې فکر وکړي او د اتومي دستګاوو ناوړه اغېزې دې توضیح کړي. او د هرې ډلې استازی دې په وار سره د خپلې ډلې څرګندونې نورو ته واوروي.

## پوښتنې:

سم ځوابونه انتخاب کړئ:

۱. له لاند نیو هېوادونو څخه یو هېواد د صنعتي انقلاب زانګو وه.

الف: جرمني ب: انګلستان ج: فرانسه د: ایټالیا

۲. چرنوبل د برېښنا د تولید اتومي دستګاه په کوم یو لاندني هېواد پورې اړه لري:

الف: اوکراین ب: قزاقستان ج: ترکمنستان د: ارمنستان

۳. مضر ګازونه کومې منفي اغېزې لري؟

الف: د اوزون طبقه ویجاړوي ب: د ژوندانه لپاره ګټور دي

ج: د تنفس لپاره ګټور دي      د: یوازې د نباتاتو لپاره ګټور دي.

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. کوم ګازونه د ژوندانه چاپېریال ککړوي؟

۲. د فابریکو مضر ګازونه د کومو ناروغیو لامل ګرځي؟

۳. د اتومي فابریکو تاسیسات کومې ستونزې رامنځته کوي؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د هغو مضرو ګازونو لست ولیکئ که په پخلنځي کې شتون ولري او د انسانانو په ژوندانه باندې ناوړه اغېزې کوي.

# ۸-۲-۰ د صنعتي موادو پاتې شوني:



**د چاپېريال د ککړتيا په هکله مو فکر کړى دى او د صنعتي پاتې شونو په زيان پوهېږئ؟**

د ژوندانه چاپېريال هغه ځاى دى چې انسان په کې ژوند کوي او ټول صنايع او فابريکې د انسانانو د اړتياوو د پوره کولو لپاره دي. خو د هغو تر څنګ روغتيا او پاکي اساسي اړتيا ده چې د ژوندانه چاپېريال په ټوله کې پاک وساتو نو له همدې امله هغه صنعتي پاتې شوني چې کارخانې او صنايع يې توليدوي د هغو د زيان مخنيوى وشي چې چاپيريا ل ککړ نشي. پاتې شوني په لاندې برخو وېشل شوي دي.

۱. فزيکي پاتې شوني:Physical Wastes لاندې برخې لري: د کورونو پاتې شوني، ناولې اوبه او داسې نور.

۲. کيميايي پاتې شوني لکه: کاربن، کاربن ډاى اکسايد، نايتروجن اکسايد، عضوي مالګې او نور

۳. خدماتي سکتورونه: چې ځمکني، هوايي او سمندري نقليه وسېلې دي.

۴. د خوړو پاتې شوني: د ډوډۍ او پخلنځي پاتې شوني.

۵. ښاري پاتې شوني چې معمولاً د ورستو مواد و پاتې شوني د میتان گاز تولیدوي.

۶. اتومي تولیدي منابع: د هوا د اتومي ایونونو د ترکیب ککړتیا.

۷-صنعتي تولیدات: چې د کلوروفلورو کاربن C.F.C گاز ورځخه تولیدېږي.

پاتې شوني معمولاً د کیمیاوي او فزیکي تعاملاتو په واسطه د چاپېریال اصلي خواصو ته تغیر ورکوي او دغه تغیرات په وجه، اوبو او هوا ناوړه اغېزې لري چې په فضا کې د اوزون طبقه ویجاړوي او په سبب یې له بنفش ځخه اخوا ته وړانگې مستقیماً په ځمکه لگېږي چې د انسانانو او نورو ژوندیو موجوداتو په روغتیا او په همدې ډول د ځمکې د کرې د آب و هوا پر تغیر منفي اغېزه کوي. د پاتې شونو شتون د انسانانو لپارهستره ستونزه جوړه کړې ده چې د ټولو ژوندیو ژوند تهدیدوي. اوس وخت د انسان د ژوندانه چاپېریال غیرصحي شوی او د زیاتو ستونزو د رامنځته کولو لامل گرځېدلی دی. له بله پلوه صنعتي پاتې شونو سمندرونه ککړ کړي دي او هغه حیوانات چې په سمندرونو او سیندونو کې ژوند کوي، متضرر کړي یې دي. لکه: په اروپا کې تایمز او راین سیندونه. دا سیندونه د هغو صنعتي او کیمیاوي فابریکو په سبب چې د دې سیندونو په غاړو کې جوړې شوي دي او د هغو اضافي مواد سیندونو ته ځي او د حیواناتو



د الاسکا په سواحلو کې د نفتي ککړتیاوو پاکول

د ژوندانه چاپېریال ککړوي.

سمندرونه د اتومي او نفتي موادو په واسطه هم ککړیږي چې د سمندري حیواناتو د له منځه تللو سبب ګرځي. انسانان د نفتي موادو په واسطه د سمندرونو د زیاتو ککړتیاوو شاهدان دي چې یوازې د امریکا په متحده ایالتونو کې ۷۰۰۰ پېښې یې ثبت شوې دي.



د راین دسند حوزه او د هغې د شاو خوا صنعتي مرکزنو

همدارنګه په ډېرو نورو سیمو کې هم د نفتو باروړنکې بېړۍ د تخنیکي ستونزویه سبب په سمندر کې د نفتو د انتقال پر وخت سمندرونه ککړوي. د سمندرو له تل څخه د نفتو رایستنې هم د هغو د اوبو ککړتیا ډېره کړې ده. نو له همدې امله د ځمکې په کره باندې صنعتي پرمختګونه که له یوې خوا د انسان د اړتیاوو د پوره کولو په برخه کې ګټور وو، په هغه اندازه یې ځمکه، سمندر او هوا ککړه کړې هم ده چې مهمې نمونې مو مخکې وړاندې کړې، یعنې د انساني فعالیت پاتې شونو په ټوله نړۍ کې ستونزې رامنځته کړې دي چې تر اوسه پورې موږ له دې ستونزو سره لاس او ګریوان یو.



## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او د فابریکو د تاسیساتو او د ژوندانه په چاپېریال باندې د هغو د ضررونو په هکله دې بحث وکړي او د بحث پایله دې د هرې ډلې استازی په وار سره خپلو ټولګیوالو ته واوروي.



### پوښتنې:

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱. صنعتي پاتې شوني په نړۍ کې د انسانانو لپاره ډېر لوی ........... دی.

سم ځواب انتخاب کړئ:

۲. د اروپا کوم سیندونه ډېر ککړ دي:

الف: راین ب: ټایمز ج: دنیوب د: الف او ب سم دی

لنډ ځواب ورکړئ

۱. ولې په ښار کې د ننه د فابریکو شتون ضرر لري؟

۲. پاتې شوني څه ته وایي؟

۳. په کوم هېواد کې صنعتي پاتې شوني زیات دي؟

۴. د سمندري حیواناتو د ژوندانه چاپېریال کوم ډول پاتې شوني تهدیدوي؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت:

د ژوندانه د چاپېریال په باره کې معلومات ورکړئ او د مضرو پاتې شونو لاملونه ولیکئ او په ټولګي کې یې وړاندې کړئ.

## ۸–۳. د اوزون د طبقې د نري کېدلو خطرونه:

ایا پخوا مو د اوزون د طبقې اصطلاح اورېدلې وه؟




د اوزون $O_3$ طبقه د تروپوسفیر د طبقې له پاسه د سمندر له سطحې څخه د ۱۵ کیلومترو په لوړوالي د بنفش څخه اخوا ته د وړانګو Layer ultra violet یا ULپه وړاندې د یو خنډ په توګه عمل کوي. دغه وړانګې ښایي د پوستکي د سرطان، د سترګو د عدسیې د خرابېدو او همدارنګه د کرنیزو محصولاتو او د سمندر د کبانو د له منځه تللو او په نباتاتو کې د نوري ترکیب یا فوتوسنتز د عملیې د کمښت سبب وګرځي. له بنفش څخه هغه خوا وړانګې په درې ډوله دي:

۱. له بنفش څخه اخوا ته هغه وړانګې (uv-c) چې د څپو اوږدوالی یې له ۲۰۰ – ۲۸۰ نانو متره وي. یو مایکرون متر له زرو نانومترو سره او یو میلیون نانومتره د یو ملي مترو سره

مساوي دی. دا وړانگه زیاته انرژي لري او زیان اړونکې ده، خو د اوزون پوړ د دې وړانگې خنډ گرځي.

۲. له بنفش څخه هغه خوا ته وړانگې(uv-A) چې د څپو اوږدوالی یې ۲۸۰ -۳۲۰ نانو متره دی. هغې ته فعالې وړانگې هم وايي چې د تل لپاره د وخت په تېرېدو سره ژوند تخریبوي یعني د ځمکې د اوسېدونکو لپاره خطرناکې وي. اغېزې یې سملاسي نه وي، خو د وخت په تېرېدو د هغې منفي اغېزې په ژوند باندې خطرناکې دي.

۳. له بنفش څخه هغه خوا ته وړانگې(uv- B) چې د څپو اوږدوالي یې له ۳۲۰ -۴۰۰ نانو متره دي.




دغه وړانگې د ځمکې د ټولو اوسېدونکو لپاره زیان لري. د انسان او د ځمکې د نورو حیواناتو ژوند په مرگ گواښي. لکه چې مخکې مو یادونه وکړه د سترگو د ړندېدو او د پوستکي د سرطان سبب گرځي.

ځمکه د کور په توګه د ټولو ژوندیو موجوداتو د استوګنې ځای دی. باید له ټولو ککړتیاوو څخه وساتل شي. د تروپوسفیر په طبقه کې د اوزون ګټور ګاز چې ۱۱ کیلومتره پېړوالی لري د ځمکې کره را چاپېره کړې ده.

د نایتروجن او اکسیجن ګازونه په ژوند باندې مستقیمې اغېزې لري. په دې سربېره د هغو ټولیزه ترکیب د تروپوسفیر طبقه د بنفش څخه اخوا ته وړانګو څخه ساتي.

د اوزون طبقه $O_3$ د لمر د وړانګو او د ځمکې د تروپوسفیر Troposphere د هوایي طبقې ترمنځ یوه حایله طبقه ده چې د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو د ژوند لپاره د هر ډول فعالیت زمینه برابروي او د ځمکې حیاتي کره یا بایوسفیر Biosphere تمثیلوي.

نو له همدې امله د اوزون د طبقې نرې کېدل او یا تخریب او له منځه تلل، د ځمکې پر مخ ژوند له ګواښ سره مخامخ کوي.

## په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ چې په لاندې موضوګانو دې په خپل منځ کې بحث وکړي او د بحث پایله دې د هرې ډلې مشر خپلو ټولګیوالو ته واوروي.

۱. د اوزون طبقه څه حیاتي ارزښت لري؟

۲. له بنفش څخه اخوا ته uv-C وړانګې څه زیان لري؟

۳. له بنفش څخه اخوا ته uv-B وړانګې څه ځانګړتیاوې لري؟

۴. له بنفش څخه اخوا ته uv-A وړانګو ضرر توضیح کړئ.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ

۱. له بنفش څخه اخوا ته کومې وړانګې د پوستکي د سرطان او د سترګو د ړندېدو لامل ګرځي؟

۲. بایو سفیر څه معنا لري؟

له څلورو ځوابونو څخه سم ځواب په نښه کړئ:

۱. له بنفش څخه اخوا ته د uv-c د وړانګو ځانګړتیاوې څه دي.

الف: د ژوندیو ژوند تامینوي    ب: د ځمکې په مخ په ژوند باندې ناوړه اغېزه لري.

ج: هېڅ ډول اغېز نه لري.    د: د پوستکي د سرطان لامل ګرځي.

۲. له بنفش څخه اخوا ته uv-B وړانګې:

الف:د ځمکې د مخ ګټورې وړانګې دي    ب: هېڅ اغېزه نه لري

ج: منفي اغېزې نه لري    د: د ځمکې پرمخ د ژوند لپاره ضرر لري.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

له کتابتون او انټرنېټ څخه په ګټې اخیستنې سره د اوزون د طبقې د اهمیت تر سرلیک لاندې معلومات راټول کړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته واوروئ.

# د اوزون د طبقې زيانمن کېدل.



سويلي قطب



شمالي قطب

د اوزون طبقه د ځمکې په کره کې د ژوند د دوام لپاره څه ارزښت لري؟

فضا او د هوا طبقاتو په باره کې نوي مطالعات د ريموټ سنسنګ Remote sensing په واسط سرته رسېدلي دي. جغرافيه پوهانو وموندله چې د ځمکې د مخ د ساتنې قشر د ګلخانه يي او C.F.C ګازونو د زياتوالي په واسط په جنوبي قطب کې زيانمنه  شوې ده. د اوزون طبقه انسان له هغو وړانګو څخه چې له بنفش څخه اخوا ته دي، ساتي او د هغو شتون لازم او اړين دی.

لکه چې په تېر لوست کې وړباندې بحث وشو، د اوزون طبقه د اتموسفير Atmosphere د طبقې ساتونکی قشر دی چې ژوندي موجودات د لمر له هغو وړانګو څخه چې له بنفش څخه د هغه خوا ته وړانګو په نوم يادېږي، ساتي. په ۱۹۴۷ ميلادي کال کې ځينو پوهانو و موندله چې ګلخانه‌يي ګازونه لکه: کاربن ډای اکسايد، ميتان ګازونه او د نايتروجن اکسايد او د کلورو فلورو کاربن ګاز چې د اوزون د ګاز  د طبقې د زيانمن کېدلو سبب ګرځي. دا ګازونه له سړوونکو دستګاوو Air condition لکه: يخچالونه، اېرکنډېشن، سړوونکي ماشينونو او

داسې نورو څخه راوځي چې په پوره اندازه د فلوروکلورو کاربن ګازونه خارجوي او هوا ته پورته کېږي. دغه ګاز د اتموسفیر په ټیټه طبقه کې له درندو ګازونو سره تعامل نه کوي. کله چې د اوزون طبقې ته ورسېږي، کیمیایي تعامل کوي او د اوزون د طبقې د تخریب سبب ګرځي.
همدا رنګه پوهانو په ۱۹۸۷ میلادي کال کې وموندله چې د جنوبي قطب ۵۰ سلنه د اوزون طبقه زیانمنه یا Deplete شوې ده یا له منځه تللې ده او پیرِوالی یې لږ شوی دی چې پوهانو هېڅکله په دې اندازه د اوزون د طبقې د زیانمن کېدلو فکر نه کاوه. نو له همدې امله پوهانو په ۱۹۹۵ میلادي کال کې د کاناډا په مونتریال ښار کې راټول شول چې د اوزون د طبقې د لازیات زیان مخه ونیسي او همدغه موضوع د نړیوالو غوږ ته ورسوي. نو له همدې امله په دې لویه علمي غونډه کې پرېکړه وشوه چې د جنوب قطب د اوزون طبقې د نور لازیات زیانمن کېدلو مخنوی وکړي او هغه ترمیم کړي او د کلوروفلورو کاربن دګاز د لازیات تولید مخه ونیسي. خو متاسفانه ټول ګډون کوونکي هېوادونه د مونتریال پرېکړې ته ژمن پاتې نه شول.
په پای کې د نړۍ د ۱۲۴ هېوادونو استازي د لندن په ښار کې راټول شول او د کلوروفلورو کاربن د زیات خطر او د تولید په باره کې یې بحث وکړ او په قاطع ډول یې پرېکړه وکړه چې د مونتریال د غونډې په پیروۍ، په لندن کې د ګلخانه‌یي ګازونو او په جدي توګه د کلوو فلورو کاربن ګاز د تولید مخه ونیسي. په ۱۹۹۸ میلادي کال کې وښوول شوه چې د جنوبي قطب په اوزون طبقه کې لوی سوری منځته راغلی دی چې پراخوالی یې ۲۶ میلیونه کیلومتر مربع دی چې دغه پراخوالی د شمالي امریکا له پراخوالي سره مساوی دی. Van Alan چینایي پوه د نوموړي سوري په کشفولو بریالی شو.
له ۱۹۹۹ څخه تر ۲۰۰۱ میلادي کا ل پورې د امریکا د متحده ایالتونو پوهانو د NoAA او NASA ټولنو د فضایي څېړنو په مرکز کې وموندله چې د وان الن کشفیات په واقعي ډول صحیح دي. په ۲۰۰۳ میلادي کال کې د اوزون د طبقې د زیانمن کېدلو اندازه ۲۸ میلیون کیلو متره مربعو پراخوالي ته ورسېده.
پوهان په دې لټه کې شول چې په بېړني ډول د $O_3$ د تخریب مخه ونیسي. په پای کې په دې

بريالي شول چې په جنوبي قطب کې د اوزون د طبقې د زيانمن کېدلو مخه ونيسي ځکه چې د اوزون د طبقي تخريب په ځمکه کې د لاندنيو زيانونو سبب گرځي:

- په ځمکه کې د يخچالونو ويلې کېدل.
- د سمندرونو د اوبو د سطحې لوړېدل.
- د وچکالۍ رامنځته کېدل او په ځمکه کې د کرنيزو محصولاتو کمښت .
- له مخکينيو کلونو څخه د تودوخې د درجې زياتېدل.

## په ټولگي کې فعاليت:

ز ده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ چې د ځمکې پر مخ د ژونديو اجسامو لپاره د اوزون د قشر د ارزښت او کله چې د اوزون طبقه تخريب شي د هغې ناوړه راتلونکې پايلې دې د ځمکې په کره کې تر بحث لاندې ونيسي او د بحث پايلې دې د ډلې مشر خپلو ټولگيوالو ته بيان کړي. ښوونکی دې د بحث پايله له خپلو معلوماتو سره يو ځای کړي او زده کوونکوو ته دې وړاندې کړي.

**پوښتنې**:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. د اوزون د طبقې په باره کې لنډ معلومات وړاندې کړئ.

۲. د کلورو فلورو کاربن C.F.C گاز په کومو صنا يعو کې کارول کېږي او د اوزون د طبقې لپاره څه ضرر لري؟

۳. ولې د اوزون طبقه تخريبېږي؟

۴. ګلخانه‌يي ګازونه کومو ګازونو ته ويل کېږي او ولې په دې نوم يادېږي؟

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱- د لندن د ۱۹۹۵ ميلادي کال په غونډه کې پرېکړه وشوه چې د ــــــ او ــــــ ګازونو مخنيوی دې وشي.

۲. په ۱۹۹۸ ميلادي کال کې يو چينايي پوه چې............نومېږي وموندله چې د اوزون د طبقې زيانمن کېدل......... کيلو مترو مربع ته رسېدلی ده.



## له ټولګي څخه بهر فعاليت:

د ښوونځي له کتابتون، مجلو او نورو منابعو څخه د ګلخانه‌يي ګازونو او هغه لاملونو په هکله چې له هغو څخه يې سرچنه نېولې ده، څو کرښې وليکئ او د جغرافيې د مضمون په راتلونکي ساعت کې يې خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړئ.

## ۸–۰۴ د ځنګلونو پرې کول:



ایا پوهیږئ چې د ځنګلونو پرې کول د ژوندیو موجوداتو لپاره څه تاوان لري؟

ځنګلونه او د هغو طبیعي وده د خدایﷻ له نعمتونو څخه ګڼل کیږي چې انسانانو ته یې وربخښلي دي. ځنګلونو د ځمکې کرې ته ښکلا، صحي او اقلیمي رونق ورکړی دي. ځکه چې د ځنګلونو شته والی د هوا په چاڼولو کې چې موږ یې تنفس کوو، ځانګړی نقش لوبوي، مضرګازونه لکه: کاربن ډای اکساید جذبوي او اکسیجن ازادوي. اکسیجن یوه حیاتي ماده ده چې موږ یې تنفس کوو.

ځنګلونه د طبیعت د نظم په برابرولو، د ژوندانه د ښو شرایطو په ساتلو او د ځمکې دکرې د تودوخې د زیاتوالي د مخنیوي لپاره، ډېر اهمیت لري. په همدې ډول ځنګلونه د فوتوسنتېز photosynthesis په عملیې کې چې نباتات د ریښو په واسطه له ځمکې څخه اوبه او مالګې جذبوي او پاڼو ته یې انتقالوي، پاڼې کاربن ډای اکساید له هوا جذبوي او د لمر د روښنایي په شتون کې کاربوهایدریټ تولیدوي او د ورځې اوکسیجن ازادوي چې د ژوندیو موجوداتو د تنفس لپاره حیاتي ارزښت لري او برعکس د شپې له خوا کاربن ډاي اکساید خارجوي او اوکسیجن اخلي یعنې د کاربن او اوکسیجن د ګازونو توازن تنظیموي.

د ځنګلونو موجودیت د انسان لپاره لاندې ګټې لري:

• د میوو او نباتاتو ریښې د ځینو انسانانو خواړه جوړ وي.

• د ونو لرګي په ودانیو، د کور د سامانونو او کاغذ په جوړولو کې استعمالیږي.

• د ونو سیوری انسان له ډیرې تودوخې څخه ساتي.

• ځنګلونه د سېلابونو مخه نیسي ځکه چې باران د ونو په پاڼو او څانګو لګیږي او چټکتیا یې کموي.

د ځنګلونو خاوره په وښو، ښاخونو او پاڼو پوښلې وي چې اوبه جذبوي او له اوبو څخه ډکې ویالې جوړوي.

• د ځنګلونو له حاصلاتو څخه د ځینو درملو د تولید لپاره ګټه اخیستل کیږي.

• ځنګلونه د تفریح او ساعت تیرۍ لپاره مناسب ځای ګڼل کیږي.

• ونې د موټرو، فابریکو او الوتکو غږونه کموي.

• د وحشي ژوو د ژوند چاپېریال جوړوي.

د نړۍ په زیاترو سیمو کې د خوړو، د کورونو د سامانو نو او سون توکو او نورو اړتیاوو د پوره کولو لپاره ځنګلونه پرې کیږي د ۱۹۸۰ میلادي کال په لسیزه کې د نړۍ په زیاتو سیمو کې د ځنګلونو دپریکولو شاهدیو. د احصایې له مخې یوازې د ځمکې په تودو استوایي سیمو کې، هر کال د ۱۰۵ ملیونو هکتارو په اندازه ځمکه له ځنګلونو څخه پاکیږي.



د ځنګلونو له منځه وړل د ژوند له منځه وړل دي

د ځنګلونو پرې کول د ځمکې په کره کې د ګټې پر ځای ډېر تاوان لري او اقلیم ګډوډوي. ځکه چې د نفوسو زیاتوالی او د صنعت زیات پرمختګ او فابریکو په اروپا، امریکا، افریقا، آسیا او اوقیانوسیه کې ځنګلونه محدود کړي. په دې وروستیو کلونو کې د ملګرو ملتونو شین سازمان جوړ شو. د دې خوځښت پلویان د دې ځنګلونو د پرې کولو مخه نیسي، خو تر اوسه بریالي شوي نه دي.

د ځنګلونو پرېکول په شمالي او سویلی دوارو کرو کې یو شانته روان دي. د ځنګلونو پرېکول د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې لیدل کېږي چې د اور لګولو او صنایعو لپاره پرې کېږي او د طبیعي زېرمو یوه برخه له لاسه ورکوي په پایله کې صحرایي سیمې په چټکۍ پراخېږي.

لاندې لاملونه د ځنګلونو له منځه وړلو کې زیاته برخه لري:

۱. د کورونو جوړول او په نړۍ کې صنعتي پرمختیا.

۲. په کرنېزه ځمکه د ځنګلي سیمو تبدیلول.

۳- اور لګېدنې.



## په ټولګي کې فعالیت:

ز ده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ. یوه ډله دې د ځنګلونو د موجودیت په ګټو او بله ډله دې د ځنګلونو د پرې کولو په ضررونو یو له بل سره بحث وکړي او نتیجه دې د هرې ډلې استازی خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.



## پوښتنې:

لنډ ځواب ورکړئ:

۱. د فوتوسنتیز عملیه د هوا په پاکوالي کې څه اغېزې لري؟

۲. له ځنګلونو څخه کومه اقتصادي ګټه اخېستل کېږي؟

۳-د ځنګلونو له منځه تلل د ژوندانه په چاپېریال څه اغېز لري؟

سم ځوابونه د (س) په توري او ناسم ځوابونه د (غ) په توري په نښه کړئ:

۱. ځنګلونه د اتموسفیر دوړې او خاورې له منځه وړي.

۲. د اوکسیجن او کاربن توازن په هوا کې تنظیموي.

۳. د ځنګلونو پرې کول زموږ د اقتصادی اړتیاو د لرې کولو لپاره ګټور دي.

۴. د ځنګلونو تخریب په شمالي او جنوبي نیم کره کې یو ډول دی.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت:

په ډېرځیر سره د ځنګلونو د پرې کولو اغیزې د انسانانو د ژوند په اړه وڅېړئ او پایله یې په کتابچو کې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې په ټولګي کې ولولئ

# اصطلاحات

۱- اتموسفیر Atmosphere: هغه هوا چې ځمکه یې چاپېره کړې ده. اتموسفیر بېلابېلې طبقې گازونه او مواد لري. د اتموسفیر عناصر $O_2$، N، $Co_2$، هیلوم He، میتان $Ch_4$ او کریتون kr دي.

ترپوسفیر پوړ Troposphere له ۰-۱۲ کیلو مترو پورې دی.

ستراتوسفیر پوړ Stratosphere ۱۲-۴۸ کیلو مترو پورې دی.

میزوسفیر پوړ Mezosphere **۴۸- ۹۸** کیلو مترو پورې دی.

ترموسفیر پوړ Thermosphere **۹۸- ۶۸۹** کیلو مترو پورې دی.

اگزوسفیر پوړ د Exosphere **۶۸۹** کیلو مترو څخه زیات

۲- اجباري مهاجرتونه: هغه مهاجرتونه چې په خپله خوښه او رضا نه کېږي لکه: د جگړو او طبیعي افتونو په سبب مهاجرت کول.

۳- استرونومي Astronomy: د لمر، ستورو، سیارو او نورو آسماني اجرامو تحقیقي علم دي.

٤- اسناد Document: تحقیقي رسمي او داسي نور اسناد.

۵- انټرنېټ Internet: تنظیم شوی سیستم دی چې د تجارتي، صنعتي، رسمي او تحقیقي اطلاعاتو او پیغامونو په چټکو لېږدولو کې ورڅخه کار اخیستل کېږي او د اطلاعاتو د انتقال نوی سیستم گڼل کېږي.

٦- اقلیم Climate: په یوه اوږده موده کې (له **۳۰** څخه تر **۴۰** کلنو کې) د ځمکې د آب و هوا منځنی حالت تکرار ته ویل کېږي.

۷- اقتصادي فعاله نفوس: د یوه هېواد هغه نفوس ته ویل کېږي چې په تولیدي او غیر تولیدي اقتصادي ساحو کې بوخت دي. ( د **۱۸** څخه تر **۶۵** کلنۍ پورې)

۸- اکسیجن ($O_2$): کیمیایي گاز دی چې د ژوندیو موجوداتو لپاره گټور دی.

۹- ایکولوژي Ecology: چې له طبیعي چاپېریال سره د انسانانو نباتاتو او حیواناتو اړیکې مطالعه کوي.

۱۰- ایمېل E.mail یا برېښنالیک: یوتنظیم شوی سیستم دی چې په اوسنۍ ټکنالوژۍ کې دیوې ښې سرچینې په توگه په چټکۍ د اطلاعاتو او پیغامونو په انتقال کې کارول کېږي.

۱۱- بهرني مهاجرتونه: هغه مهاجرتونو ته ویل کېږي چې خلک له یو هېواد څخه بل هېواد ته مهاجرت کوي چې د هغه هېواد د ښو شرایطو یا د نظر وړ هېواد د ټولنیزو او نورو مختلفو برخو د فعالیتونو څخه گټه واخلي.

۱۲- ټرانزیټ: د Traitus کلمې څخه اخېستل شوي ده چې معنا یې تېرېدل دي یعنې د هېوادونو ترمنځ د یوه سټېشن څخه بل سټېشن ته د مالونو او مسافرینو انتقالیدل دي.

۱۳- پوسټ Post: د لیکونو او پارسلونو د لېږلو سیستم دی.

۱٤- پاتې شوني waster: د فابریکو او صنایعو پاتې شوي توکي.

۱۵- جبې: هغه ټيټه سيمه چې زيات لنده بل ولري او معمولاً اوبيز بوټي او واښه په کې شنه شوي وي او د ډنډونو برخلاف په اوبو نه وي پوښل شوي.
۱٦- ځوړې slope: هغه سطحه چې مايله ده او نشيب ولري.
۱۷- زېږېدنې Birth Rate: په يوه ټولنه، ښار، سيمه او هېواد کې په يوه کال کې د زېږېدنو شمېر په هرو زرو تنوکې ټاکل کېږي.

$$\text{زوکړه په کال کې} = \frac{\text{د زوکړې شمېر}}{\text{په هرو زرو تنو کې}}$$

۱۸- گازونه: د مادې يو حالت دی چې په طبيعت کې ليدل کېږي لکه: اوبه د جامد په حالت کې د کنگل په څېر، د مايع په حالت د اوبو په شکل او براس حالت دگاز په څېر ليدل کېږي.
۱۹- د اوزون قشر($O_3$): د ځمکې محافظوي قشر دی چې تروپوسفير د طبقې د پاسه موقعيت لري او ځمکه له بنفش څخه هغه خوا وړانگو څخه ساتي.
۲۰- د اوبو دوران Hydro cycle: د سمندر اوبه د تبخير په واسطه په بخار بدلېږي او هوا ته پورته کېږي او د سوړوالي په سبب بيا د باران په شکل ځمکې ته راځي او د سيندونو په واسطه سمندر ته ځي.
۲۱- نقليه وسيلې Transportation: هغه وسيلې چې د تجارتي کاليو او خلکو د انتقا ل لپاره کارول کېږي.
۲۲- د نفوسو گڼوالی: په يوه ټاکلي ساحه کې د هغو اوسېدونکو ته ويل کېږي

$$\text{د يوې سيمې د نفوسو منځي گڼوالی} = \frac{\text{د يوې سيمې ټول نفوس}}{\text{د سيمې پر ټول پراخوالي}}$$

۲۳- د نفوسو طبيعي وده: د زېږېدنو او مړينې دواړو لاملونو پورې اړه لري په يو هېواد يا يو ه سيمه کې د نفوسو د طبيعي ودې د شمېرنې لپاره بايد د پام وړ کال کې د زېږېدنو د ودې او د مړينې اندازه و شمېرل شي او پايله يې په سلنو اعلان شي.

$$\text{نفوسو طبيعي وده} = \frac{\text{د زېږېدنو شمېر – د مړينې شمېر}}{\text{په ټول نفوس}}$$

په هغه صورت کې چې د زېږېدنو شمېر له مړينې څخه زيات وي د نفوسو طبيعي وده شتون لري.
۲٤- د نفوسو ميخانيکي حرکت:هغه مهاجرتونه چې سياسي، اقتصادي او مذهبي او نورو لاملونو په سبب له هېواد څخه بهر ته کېږي نفوسو د مخانيکي حرکت دی. د ننني مهاجرتونو د نفوسو د دوهم ځلي ځای پر ځای کېدنې سبب کېږي د نفوسو په شمېر اغېزه نه لري.خو بهرني مهاجرتونه د

نفوسو په شمیر مهمه اغېزه لري. که مهاجرتونه هېواد ته د بهر څخه نسبت هغو مهاجرتونو ته چې د هېواد څخه بهر ته کېږي ډېر وي، د نفوسو میخانیکي وده منځته راغلې ده.

۲۵- د نفوسو چاودېدنه: د نفوسو د شمېر چټک زیاتوالي په وروسته پاتې هېوادونو کې د مړینې د سطحې راټیټېدل او د زېږېدنو شمېر په لوړه سطحه ساتلو ته د لویدیځ پوهان د نفوسو چاودېدنه وایي.

۲۶- دایمي مهاجرتونه: هغه مهاجرتونه دي چې مهاجرین یې خپل لومړني ټاټوبي ته د بېرته راتللو نیت ونه لري.

۲۷- کورني مهاجرتونه: هغه مهاجرتونه چې په دایمي یا موقتي (موسمي) توګه د هېواد په دننه کې عملي کېږي.

۲۸- دیموګرافي: د یوناني کلمې دموس Demos (خلک) او ګراف Graph (ترسیم) څخه ترکیب شوې چې د نفوسو د طبیعي زیاتوالي، هجرت، جنس، عمر، کسب او کار او نورو ځانګړتیاوو د مطالعې ته ویل کېږي.

۲۹- ډله ییزې اړیکې یا Telecommunication لکه راډیو، ټېلفون، موبایل، انټرنېټ، د سپوږمکیو سیستم او داسې نور.

۳۰- کلورو فلورو کاربن مخفف C. F. C دی.

۳۱-. ککړتیا Pollution: هغه پروسه ده چې په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د هغې په واسطه د چاپېریال یوه برخه د ژوند لپاره نا مساعده کېږي یا خطرناکه ګرځي. ککړتیا په چاپېریال کې د یوه یا څو عناصرو، لکه: لوګي او ګازونه په هوا کې او یا په سمندر کې د نفتي مواد و زیاتوالی د نفت وړونکو ټانکرونو د سوري کېدلو په واسطه ککړېږي، تیزابي بارانونه او داسې نور.

۳۲- کنګلونه: د یخ ټوټې چې د غرونو په لوړو برخو او قطبینو کې شته.

۳۳- لویې لارې High way: د ځمکني ټرانسپورټ عمومي سړکونه.

۳٤- ناساNASA: د امریکا د متحده ایالتونو د فضایي تحقیقاتو مؤسسه

مړینه: په زرو تنو کې د مړینې اندازې ته ویل کېږي .

$$\text{په یوه کال کې مړینه} = \frac{\text{د مړو شمېر}}{\text{په هرو زروتنو کې}}$$

۳۵- مهاجرت immigration د استوګنې د ځای بدلون له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته مهاجرت ویل کېږي که دا مهاجرت د هېواد په دننه کې وي د Internal Displacement په نو م ا و که د یوه هېواد څخه بل هېواد ته وي د immigration په نوم یادېږي.

۳٦- میډیا Media یا ډله یېزې اړیکې چې ټلویزیون، راډیو او چاپ شوي مطبوعات او داسې نور احتوا کوي.

۳۷- مصنوعي سپوږمکۍ Satellite: د نوې ټکنالوژۍ ډېره عصري وسیله ده چې ځمکه او

سیارې مطالعه کوي.

۳۸- مګنتوسفير Magnetosphere: د ځمکې په شاوخوا کې د مقنا طيسي کره ده

۳۹- نړیوال توب Globalization

۴۰- موقتي مهاجرتونه: هغه مهاجرتونه دي چې مهاجرين خپل لومړني ټاټوبي ته بېرته د راتګ نيت لري.لکه: د کوچيانو موسمي مهاجرتونه

۴۱- سلولر Celleular: د مخابرې نوې وسيله ده چې کوچنۍ او لويې سيمې د مخابرې تر پوښښ لاندې راولي.

۴۲- فکس Fax: ميخانيکي جوړښت دی چې د هغه په واسطه اطلاعات او اسناد لکه: اقتصادي، تجارتي، دفتري او تحقيقي لرې او نژدې واټن ته په لږ وخت کې له يوه ځايه بل ځای ته لېږدوي.

۴۳- هايدروسفير Hydrosphere: اوبلنې کرې ته ويل کېږي. ځمکه د سمندرونو او نورو اوبلنو عناصرو په واسطه چاپېره شوې ده.

۴۴- Remote Sensing: د اوسني وخت عصري ټکنالوژي ده چې له لرې واټن څخه معلومات ورکوي.

۴۵-I M P(Interface Message Processor): له يو کمپيوټر څخه بل کمپيوټر ته د پيغامونو لېږدول دي

۴۶- G.P.S (Global. posthirning system) په نړۍ کې د موقعيتونو د ټاکلو سيستم دی.